د کلتور دولتی کمیټه
د فرهنګ ریاست
د فرهنګ آمریت

# پښه یی فولکلور

لیکوال: عبدالمالک لاموال

۱۳۶۵

د کلتور دولتی کمیته

دخلگو فرهنگ ریاست

دخلگو فرهنگ آمریت

# پشه یی فولکلور




لیکوال: عبدالمالك لاموال

۱۳۶۵ کال

د کلتور دولتی کمیته
د خلگو فرهنگ ریاست
د خلگو فرهنگ آمریت

عنوان : پشه یی فولکلور

ټولوونکی : عبدالمالك لاموال

خپرونکی : دخلکو فرهنگ آمریت

مهتمیم : عبدالهادی تحریك
تیراژ : ۲۰۰۰ ټوك

دچاپ ځای : دولتی مطبعه

پرله پسی نمره: ۱۲۳

کال: ۱۳٦۵

# سر لیک

# ځوخبري

دکلتور ددولتی کمیټی دخلکــوفرهنګ اداره ویاړی چی دخپــل ویاړلی ګوند او انقلابی دولت دفر هنګی پالیسی په رڼاکی دخپل نورو خپرونو په لړکی‌دا ځلی‌دپښه ئی‌وروړملیت په‌نوم کتاب دهیواد دفرهنګ میناتو په‌تیره‌پښه یی زړه‌وراومیړنی‌خلکوته چاپ او وړاندی کوی .

پښه یان چی زموږ دورو نــــو ملیتونو څخه یوملیت اود هیـــواد په ختیزه برخه یادلرغونی (ګنــدهارا) (دکابل او پښاور ترمنځ‌پراخه سیمه) په شمالی ستره برخه کــی‌دپخوا څخه راپه‌دی خوا په خــورا سرلوړی سره میشته دی دیوه‌ماړه‌اولرغونی فرهنګ اوکلتور خاوندان دی اود تاریخ په اوږدو کی دخپل‌نورو ورونړو سره یو ځای دوطن او آزادی ددښمنانو سره‌په خورا میړانی او سرښندنی سره جنګیدلـــی اود نړی سترو تیری کوونکو قدرتونو ته خپل میړانه اوتوره په‌ډاګــه کړی اوهغوی ته نه‌هیر یدونکـــی‌ماتی ورپه برخه کړی دی .

که‌دغه اثر یو څه په‌غور ســره ولوستل شی‌دپخوانیوآریایانو ژوند

سری ته ورپه یادوی اودا ښه په کوته کیږی چیدغه خلکو دخپل اجداد ومیراث دنورو آریایی خلکوڅخه زیات خوندی ساتلی دی اوتر اوسه پوری په ډیر لمړنی بنــــه ژوند کوی اوعلت یی هم زموږ پــه هیوادکی دفیوډالی اوماقبل فیوډالی مناسباتو شته والی اوپه ټولنه کی د ظالم اومستبد رژیمونو واکمنـــی وه چی دغه خلکوته هیڅ پاملرنـــه نه وه شوی اودوی یی دعلم اوپوهی اوپرمختیا له نعمت څخه لیری اوبی برخی ساتلی اود دوی دژوندانـــه دښه کیدو په خاطر هیڅ راز امکانات یی نه و رامنځ ته کړی تر څوپه دی توګه دخلکو دوروسته پاتی والی څخه په استفادی سره خپل طفیلی ژوند اوننګینی واکمنی تـــه دوام ورکړی چی له نیکه مرغه په هیوادکی دثور دپرتمین انقلاب په بـــری سره دغه طفیلی ژوند اوشرموونکی واکمنی باندی دابد لپاره دپای ټکی کیښودل شو اوزموږ دکړیدلو خلکودژوندانه دسطحی دهر اړخیز لوړتیا اود هغوی دفرهنګ او ادبیاتو دلاغوړیدنی په لارکی په زړه پوری ګامونه اوچت شول چی موږ دبیلګـــی پــه توګه په پشه یی ژبه درادیو اود ملیت های برادر او ژوندون دمجلو له لاری خپرونی اوهمداراز دهیواد په مطبوعاتو کی ددوی دفرهنـــګ کلتور تاریخ اونورو برخوکی دمطالبو او معلوماتو خپرول اودانقلا بی اړ) او (پشه یی ــ پښتو متلونـــه) نوی خپلواك اثرونه او داسی نـــوریادولای شو. چی دادی اوس موږهم په دی بریالی شوچی دپشه یی وروړملیت دفرهنګ په هکله دغه کتاب چی: دپشه یانو دژوند په هکلـــه څو خبری.

- سوچه فرهنګ په پشه یانو کی
- فولکلوری روایات
- دمالداری اهمیت په پشه یانوکی
- دارو درمل په پشه یانو کی

دعنوانونو ترنامه لاندی دپښه یانو ډیر ارزښتناك فرهنگ او فو-
لکلوری روایات چی د ځوان څیړونکی عبدالمالك لاموال له خوا غونډ
اولیکل شوی دی، دخلکو دفرهنګ‌اداری له‌لاری دپښه یی دفرهنــــګ
دبنډلا سمسورتیا په هیله چــاپ‌او خپور کړو .
چی‌موږ ددغه اثر مولف زیــارایستنه ډیرقدر وړبولو اوهیله-
مندیو چی دخپلو خلکو دکلتور اوفرهنگ په برخه کی ترد ی‌لازیات
خدمتونه وکړی اوستر بریالیتوبونه یی په برخه شی .
په درناوی .
شمس‌الدین ظریف صدیقی
دخلکو دفرهنگ داداری آمر





# یادونه

زموږ دویاړلی هیواد ګران افغانستان دمیشته وروڼو ملیتو نـــو څخه یوهم دپشه یی میړنی ملیت دی چی زیاتره زموږ دهیواد په ختیـــزه برخه دکونړ ،ننګرهار ،لغمان ،کاپیسا اوددی ولایتونو شاو خـــوا سیمو کی دخپل نورو وروڼو ملیتونوتر څنګ دپیړیو پیړیو څخه راپدی خوا اوسیدلی اود دوی داوسید نی لرغونی سیمی جوړوی.

پشه یان (چی دپشای، پاشایی، پشایی ،اوپوشایی په بڼو هم لیـــکل شوی) دزمانو په اوږدوکی لکـــــه دنورو ملیتونو په څیر په بیل بیل نومونو نومول شوی اویاد شوی دی. په لرغونو زمانوکی دالینا یانو ځای په لرغونو زمانوکی دالینا یانو په نامه چی اوس هم دالینګار، الیشینګ، اله سای نومونوکی چی د پشه یـــی سیمو او سترو درونومونه دی اود الینانو ځای کور او سیمی مانا لری ددی کلمی ریشه موجوده ده یـــاد شوی. کله دپیشا چه یاپایشا چـــی اصطلاح د ځینو خلکو او محقیقینـــو له خوا دوی ته استعمال شوی ده پاتی یی دصرف اونحوی عالم دپهشه یابهاشه په نامه ژبی څخه سانسکرت ژبه په ګرامری توګه رامینځتـــه

کړی په یقینی ډول ویلی شو چې دهغه دی اوسنی پشه یی ژبی پخوانی نوم دی چې دوخت دتیریدو په نتیخه کی په اوسنی شکل اوښتی دی.دغه راز دغه خلك ددی په خاطر چې په غرنیو سیمو کی اوسیدلی دوی او- ژبه یی (داردی) په نامه چې په پشه یی ژبه کی غره نی او کوهستانی مانا لری یادشوی اویادیږی .ددی په خاطر چې دلغمان یادد ی نه په ارته ساحه کی دلمغانات پخوانـــی تول وګړی پشه یان اوپه پشه یــی ژبه ګړیدل اواوس هم زیاتره پشه یان دی ،منطقی ته دارتباط په اساس پشه یی ژبه دلغمانی ژبی په نامه هم یاده شوی او اوس هم دننګرهار دکوز کونړ پشه یان دغه ژبی تــه لپکانی یا لغمانی ژبه وایی اودااصطلاح ورته کاروی. همدارنګه زموږ پښتانه ورونه پشه یان دسیمی داصلی اوسیدونکو په مفهوم د(دیګان) په نامه چی دکلی خاوند اوبزګر (غیر کوچی اومیشته خلك) مفهوم افــاده کوی یادوی اویاد شوی او اوس هم دننګرهار اوکونړدسیمو خلك پشه .یانو ته دیګان اوژبی ته یی دیګانو ژبه وایی اوخپله دکونړ پشه یــان هم دقومیت په لحاظ ځان دیــګا نان بولی او دیګانان پخوا دهیواد پــه نورو سیمو کی هم میشته شوی دی. پشه یان دګاوندیو خلکو له خوا ددی په خاطر چی دوی په خپلو خبروکــی دشاړی اصطلاح چی د(ځی) (دتلــل دمصدر څخه امر) مانا لری ډیــر کاروی دشاړی یابناړی او خاریــګاپه نامه یادو ی اوداسی نور سیمه ییز نومونه دوی ته په دی وروسته وختونو کی کارول شوی دی.

پخوا زموږ په هیواد کی دکنو په شمیر دیوه محدود اشرافی لږه - کی دواکمنی اوغیر عادلانه مناسباتودشته والی په اساس زموږ دهیواد تول زیار کښښ پرګنی په تیره واړه ملیتونه او قومونه دهغو له جملی څخه پشه یی ملیت دتولو حقوقــواو امتیازاتو بی برخی و. اود دوی دژوندانه دسطحی دلوړیدو او دفرهنګ دغوړیدو په برخه کی نـــه

یوائی داچی هیخ پاملرنه نه کیده بلکی په راز راز بڼو او شکلو نـو سره هڅه کیده چی ددغه میړنـی ولسونو ویاړونه او فرهنگی شتمنی دخاوری لاندی شی.

له نیکه مرغه زموږ په لرغونی هیواد کی دثور پرتمین انقلاب دبر- یالیتوب په نتیجه کی چی دچارروواکی زموږ دربریدلو او زیار ایستو- نکو خلکو په نماینده گی د ا.خ.د.گ په لاس ورغی دخلکو داولسو نـو په گټه داسی بنستیز بدلونونه رامینځته شول چی دهغه په رڼاکـی زموږ دهیواد والو دهیلو بڼمخ په غوړیدو شو اوهرچاته، هر ملیـت، قوم او قبیلی ته دامساعد زمینـه ورپه برخه شوه چی دخپل ژوندانه اوټولنی دهر اړخیز ی پر مختیا اودخپل فرهنگ دغوړیدو اولا شتمـن کولو اوخلکوته دور پیژندلو پـه برخه کی هاند اوهڅه وکړی. دپر- مختتگ او غوړیدنی دغه کاروان سره پشه یی لیکوالو او دقلم خاوندا نو هم ځان ورگد کړ اودخپل میړنـــی ولس دفرهنگ تاریخ اود ژوندانه په هکله یی ډیر مطالب دهیوادپه مطبوعاتو کی خپاره اوان خپلـــواک اثرونه یی رامنځته کړل امدا لړی روانه ده، ځکه پشه یی خلک سره له دی چی دپوهی له نعمت څخـــه لیری ساتل شوی اوپه ځانگړی ټولنیز اقتصادی دوره کی واقع دی دډیـرزړه پوری دمینی اومحبت څخه ډك اودماړه فرهنگ څښتنان دی اوددوی دژوندانه ټول کړه وړه دلیکـــو او ساتلو او خلکوته دور پیژندلو لووړدی. په دی لړکی دپشه یانو دفو- لکلور په نامه دغه اثرچی په خاصه تومونو نومول شوی اویاد شوی دی. توگه دننگرهار دسیمی دپشه یانـــواوپه مجموع کی دټولو پشه یانـــو دژوندانه کړوړو، ټولنیز تړونو نواوعقیدو دله ییز کارونو ،دودونو فولکلوری روایاتو، دارو درمـــل،دکرنی او مالداری چارو ،کالی او لاسی صنایعو ،دموسیقـی آلات اوداسی نورو موضوعاتو په هکلـــه

حکایت کوی اوفرهنگیانو اودفرهنگ‌مینانو ته وړاندی‌شوډیر ارزښتناك کاردی اوددغه اثر دلوستلو په نتیجه کی تریو حده پوری زموږ دپشه یی خلکو دټولنیز اقتصادی ـ حالت ،فرهنگ، ددوی دکلیوا لی ټولنی جوړښت او دفرد او ټولنی‌ترمنځ‌اړیکو سه هکله په زړه پوری معلومات تر لاسه کیدای شی په دی‌ماناچی په پشه یی وگړوکی تول کارونه په خورا مینه او محبت‌دبشپړ صمیمیت په فضاکی دهیڅ راز تعصب څخه پرته دنارینو اوښځو په گډون په ډله ییزه توگه ترسره کیږی اوتر اوسه پوری ډیرلمړنی ټولنیز ژوند لری اوپه خپله هغوی کی طبقاتی تضاد ونو دومره‌وده‌نه ده‌کړی او ځینی ټولنیز ـ اقتصادی فورماسیو نونه په دوی‌کی کمی لیدل کیږی.

ددی په‌خاطر چی ټولنه په‌ډیرچټکی سره مخ په وړاندی درومی اویو ټولینز اقتصادی فورما سیون‌خپل ځای بل‌پر مخ تللی دوری ته پریږدی نودا امکان رامینځته کیږی‌چی‌د تیرو دورو او تاریخونو ځینی خپل منځی اړیکی او روابط اودخلکو کړه وړه دانسان دمغز څخه ووځی. ولی که‌په دغه شان ولیکل شی‌که څه هم‌په ډیر لمړنی او ساده بڼه هم‌وی دا امکان رامنځته کیږی‌چی‌دغه دخلکو فرهنگ راتلو نکی نسلونوته خوندی وساتل شی اومعلومات ترلاسه کړی چی ددغه‌اثر یوبل ارزښت په‌دی ټکی کی‌هم‌پروت دی.

پاتی دی نه‌وی‌چی دا لمړنی‌خپلواك اثردی چی‌دپشه یی ورور ـ ملیت دفرهنگ په هکله په پښتوژبه هغه‌هم د.ا.د.ج دکلتور دولتی کمیتی دخلکودفرهنگ (فرهنگ‌مردم)آمریت له‌خوا چاپ اود هیواد والو په‌واك کی ورکول کیږی چی دډیرقدر وړ اوزموږ دگوند او انقلابی

دولت دفرهنگی پالیسی اودخلکو دغوښتنو سره‌سم کاردی چی دخپـــل
دخلکو په نماینده‌گی دزړه له کومی‌ور څخه مننه کوم. اودپشه یی خلکو
ځوان لیکوال او شاعر عبدالما لـك‌لاموال دغه زیار ایستنه چی دډیر
کم فرصت دلړلو په وخت‌کی چـــی‌دسرتیری ددندی داجرا کولو پـــه
وقت کی لیکلی دی دډیر قـــدر وړبولو اوددغه ویاړ له‌امله چی دده
په برخه شوی مبارکی وایو اولانور بریالیتوبونه ورته غواړم ·

**(محمد زمان کلمانی)**

# دښه یانو د ژوند په هکله څو خبری

دننگرهار ولایت دغرنی سیمی ښه یان دپخوا راهیسی په ځنګل لرونکو اوښنو دروکی دخپل ژونددضروریاتو لمخی دمالداری اودلږی ځمکی په لرلوسره تراوسه خپل ژوندپه سختو او ابتدایی شرایطو کی دوام ورکړی ددوی دژوند په مورد کی غواړم گران لوستونکی پری خبرکړم ښه یان عموماً دتیکو اولرگیو څخه جوړشوی دری پوړیزه کورونو کی ژوند کوی په هریوه کوټه یی ځانته په جلا خصوصیاتو جوړ شویوی چه یوه دروازه اوبله یی داوئی په نومځای لری چه دکور په کنج کی ورته ځای ورکړ شویوی. اودبام لخوایوه‌یوه‌وړه‌کنډکی لری چی دمغی لیا ری لاندنی پوړ یاکوټی ته کښته کیږی‌چه پدی ډول دغه کورونه یو دبل سره نښتی اوکڼ کلی‌یی تشکیل‌کوی. دکورونو دیوالونه یی ټول تگی کرېر اودبندان په نوم اوږدی‌لاړی چه ښه یان ورته نوټی وایی ددیوالو نو دمحکموالی لپاره‌استعما لوی دکور په هره کوټه کی ستنی او ستنو لپاسه دلانجیر یک‌په نوم چه ښکلی نقش پکی

ښکل کړای شویوی ایږدی ترڅـــو بامونه یی ونه لویږی دکلـــی او ولس خلکو زیاتره لاری دبامونـــواو کوڅو کیچه داکثر وکوڅوسرو- نه هم بندوی تــك او راتك کــوی‌دکور په ساختمان کی هره کوټــه ځانته په مشخصو خصوصیات جوړه‌شویوی .

چه لاندنی پوړ یا کوټـــه یـــی(گنجه پوړ) په نوم یادوی چه دهغه لاره یواځی‌دمنځنی‌پوړ څخه د(اویی)په نوم لاره لری دغه کوټه کی یوا ځی دڅاروویو لپاره آزوقه لکـــه‌دجوارو تانتهی دغواوچ وابښه اود- سوخت لرگی پکی ذخیره کوی. چــه‌دغی کوټی ته دکښته کیدو پـــه خاطر داویی له لاری چه داوئـــی‌لاندی دتوت چارمغز او ارچی دلرگو دډډ ونو څخه جوړ شوی نوریایـــه‌زینه چه پشه یان ورته (شـــوړی) وایی اوپه ښکلو نقشو جوړ شویوی‌ایـــږدی .

دوهم پوړیی دمنجه پوړ په نوم‌یادوی. پدغه کوټه‌کی داستوگنځی اود څارویو لپاره دونتر په نـــوم‌ځای جوړوی اود ژمی په‌موسم کـــی بیا پدی ونترکی هغه څاروی چـــه‌شدی ورکوی ساتل کیږی او همدا رنگه پدی منجه پوړکی یوه بلـــه‌وړه کوټه چه‌پشه یان ورته (کمبا) وایی جوړوی چه پدی کوټه کـــی‌یواځی دپنیرونو خمونه او نـــور خوراکی مواد ایښودل کیږی .

چه‌دغه کوټه یواځی وړه کړکی‌لری چه‌دهغه له لاری‌دغـــی وړی کوټی ته‌دضرورت په وخت کـــی‌ننوزی .

دریم پوړیی دشرپوړ په نـــوم‌یادوی چه دهغه یودیوال عمومـــاً دتوت غوز یادارچی لویو لویو تختوڅخه چه‌په ښکلو نقشویی مزیـــن کړیوی جوړ شویوی چه پدی دیوال‌کی‌بیا دروازه هم شته چه پـــدی کوټه‌کی بیا دڅارویو ځای نوی اونور دکور ټول ضروری شیـــان او همدارنگه دلرگیو څخه غټ صندوقونه چه پشه یان ورته شانی وایی

اودتوت ارچو دلرگیو دتختو ښخـه چه دکلی معلومو نجارانو لخوا نقاـ
شی ځینی یوړ یـزه او ځینی دوه‌ړیزه جوړ شویوی چه دغلی دانی
او خوراکی نورو موادو دساتلـــولپاره ترینه کار اخستیل کیـږی .
دشانیگانو سربیره دکوسلی پــه نامه لوی لوی گندوگان د ځنگلـی
بوټو ښخه چه په پښه یی ژبه ورته (گوئیك) وائی دهغه دشنو لښتـو
ښخه دتنور په شکل جوړوی اوآخره برخه ئی دچت‌سره نژدی کوی او بیا
ورته اخیږورکوی چه پدی لوښـی‌کی یواځی کله چه فصلونه ئـی
ورسیږی نود ولس ټول خلك سره‌یو ځای دناغی دماتولو ورسته خپل
فصلونه لکه جوار ،غنم کلول په‌خپل شاگانو خپلو بامونوته چلـوی
چه جوار عموماً دپتپیو ښخه دنارینولخوا په کجاوکی چه دغه کجـاوی
هم‌دغره ځنگلی بوټی او دور مـوتیلیو ښخه جوړوی اوپه پښه ئی‌ژبه
ورته چپری وائی په خپلو شاگانوئی خپلو بامونوته رسوی او بیا ښو
ورځی ورسته دکلی او همسایـــه ښځو لخوا دکونچینك نومی لوښـی
په واسطه چه ساده دلرگو ښخـه جوړ شویوی جوار سپینوی او ښـو
ورځی دوچیدو ورسته دکلی ځوانان‌یـو ځای کیږی او بیا دغه جـــوار
په بامونو کی په کوتکونو ټکـــوی‌او دپاکولو ورسته ئی بیا په‌کوسو
لیگانو کی‌چه دبام لخوا ورته سوری‌اود پخوانه ئی ځای معلوم وی پــه
ځای کوی اوهمدا رنگه دغنمو پـه فصل کی دکلی او ولس خلك ټول
یو ځای کیږی اود غنمو دریبلـــولپاره ورځ انتخابیږی او بیا پــــه
په‌معینه ورځ ټول په شریکه دخپلوغنمو دریبلو لپاره پټیوته ورځـی
اوهریو خپل غنم ریبی اوپه یسخانوچه دلرگو ښخه جوړیږی غنم دریبلو
ورسته گیډی کوی اوپه میخانوکی‌کښته کوی او بیا په خپلو شاگانـو
نارینه خپلو بامونوته راوړی اودڅو روځو وچیدو ورسته دکلی‌ښځی
سره یو ځای کیږی اوهر څوك دخپلوهمسایگانو بامونوته په نوبت ورـ
ځی اود بامونو دغنمو دمیده کـولولپاره ورځی اوغنم په خپلو پښـو

پداسی حالت کی چه ښځو یوبل ته لاسونه په اوږو ایښی او قطارئی جوړ کړیوی په غنمو باندی پداسی حالت کی چه په پښو هم څه نلری میده کوی او دپاکیدو ورسته دغه غله هم په کوسلی او شانیګا نوته اچوی اوپکښی خوندی کوی تر څو دمږکانو اونور مضرو حشراتو څخه وساتل شی .

دغزنی سیمی پشه یان عموماً په نغریو چه دهریو هستوګنځی کوټی په منځنی برخو کی جوړشوی وی اور ورته بلوی اوخپل خوراکی مواد اودوډی پری پخوی دمچی درنائی په خاطر شونتی چه پشه یان ورته کانی وائی استفاده کوی .

دکور ضروری شیان او لوښی ئی عموماً ختین لرګی اوتیګی دی چه په پشه یا نوکی ځانته مشخص جوړونکی او کلالان لری. داغو ستلو فرهنګی لباسونه ئی زیاتره وړین اود حیواناتو پوستکی دی چه په مالداری او جانداری کی ورځنی استفاده کوی چه د ساختمان او جوړ ښت په باب دپشه یانو دصناعت ترعنوان لاندی یی مطالب نشر شوی دی.

ددوی دژوند زیات ضرور یات په مالداری او کرهنه ترسره کیږی دکرنی ځمکه دجغرافیی موقعیت له کبله کمه ده مګر زیات حاصل کوی.

غنم جوار او لوبیا پکی کرل کیږی.

دحیواناتو دشدو څخه یوائځی پنیرونه جوړوی وړیو او پوستکو څخه ئی داغوستو لباسونه اودکورنور ضروری لوښی برابروی چه هر یو ځانته لازم اوپه جلا خصو صیاتو جوړیږی چه هغه عبارت دی له ویچ ،پولنګ ،پمبیله ، سوخلی ،ګړئیك ،پاپیچ ،شاړی انبت، بنوړا، بوګه کلا ،کټ پوس ،ایتك پوس او همدا رنګه دحیواناتو دپوستکو څخه دموسیقی آلاتو په جوړو لوکی چه عبارت له ډول اودپ څخه دی هم استفاده کوی.

مالداری عموماً غویان، بزی ،ګډی دی چه عموماً دنارینو لخوا

درمو په شکل ساتل کیږي زیاتره ئی په غرونو او ځنګلو نوکی چـــــه دپخوانه ورته بانډی دکلی اوولس لخوا په شریکه جوړ شویدی ساتل کیږی په غرونو او بانډو کی چه پشه یان ورته (شال) وائی دڅارویو شدی په منځوکی نوبت چه پشه یان ورته لاوړ وائی کوی اودشدو څخه ئی چه دناړینو لخوا لشل کیـــږی پنیرونه جوړوی دشدیو په اندازه کی دتول او وزن څخه کار نه اخستل کیږی یواځی دلرګو څخه جوړشوی لوښی (ماوان) اوکتنی څخه استفاده کـــــوی ک

دبانډی پنیرونه په ولس کـــی زیات شهرت لری عموماً په خیراتو نو او ودونوکی خلکوته د ډوډی ـسره ورکول کیږی او همدا رنګــه دبانډو پنیرونو څخه چه په پشه یی ژبه ورته (لړوه ختك) وائـــی هم داسی جوړوی چه په ختینو خمونوکی چه د پخوانه دپنیرونو لپـــاره دمشخصو کلالانو په واسطه جـــوړاوپه داشونو کی دپخولو وروسته ئی په ځمکه کی ښخوی په هغــه کی په معلوم اندازه اوبه چی دجوـ شیدو یخ وی اوبیا پکی معلومـــه انــدازه مـا لـګــه یـــو ځـای کوی اچوی اوپه هغه کی لمړی کله چه د غره څخه پنیر راوړی په تیرو شپانوئی لمړی څیروی اوبیا پکـــی زیاته مالګه پاشی او څلویښت ورځی ئی دکالیو لاندی ساتی تر څـــــود پنیرونو څخه اوبه خـارج شـــی بیائی خمونو کی اچوی او سرو نه ورته بندوی تر څوپکی هوا هـــم نه داخلیږی دغه پنیرونه ده څخه کالو پوری هم ساتل کیږی اوپــــه خیراتو کی خلکوته ډوډی سره ورکول کیږی .

په کال کی شپږ میاشتی غنم او شپږ میاشتی جوار وډوډی خوری خوراکی موادئی عموماً ډوډی اوسوړســـك ســـره پنیـر ونـــــه او لـــوبیا ده چـــــه دلـــــــو بیا څخه دپخیدو ورسته اوبه تـــول بیلوی او یواځی لوبیا په تیګـــواو ختینو لوښوکی تکوی اودحلـــوا په څیرئی چه پشه یان ورته (لتهور) وائی خوری او همدارنګه دسوپ په نامه هم تری انګولی قتغ پخـوی اوپه خوړلو کی ترینه ګټه اخلی.

عموماً خوراکی مواد ،پنیر ،شدی‌اولوبیا ده‌چه په مختلفو طریقـــو ورځنی خوراکی‌مواد برابروی‌اوهمدارنگه ځینی صحرائی مختلف بــوټی چه د سابو په څیرپه خوړو نـــوع‌پټیو اوغرونوکی پیدا کیږی دپخیدو ورسته ترینه استفاده کوی.

توره لوبیا چه دسره لـــوبیـــانه وړه اوتور رنگ لری اوپـــــه پشه ئی ژبه ورته موشتیا وائــی‌لمړی هغه وچ ننی کوی اوبیائـــی دمرچ او معلوم مقدار هوگی ســـره‌یوځای ټکوی اوښه ئی میده کــوی دغه خوراکی مواد دموشته لون په‌نوم تری خوراکی مواد جوړوی.

او همدا رنگه ځنګلی بوټی دانی‌چه د «تیر» په نوم یادوی دهغه دانی راټو لـــوی اودوچیدو ورسته ئی‌دهوکی سره یو ځای میده کوی اوبیا ئی دانګولی په څیر ترینه استفاده‌کوی هم ځانته خوله زمبونکی خـــا- صیت اومزه لری دکوکنارو ددانوڅخه هم غذائی مواد داسی جوړ وی چه‌لمړی دکوکنارو دانی ننی کوی‌اوبیا ورسره مالګه اومرچ په‌معلوم مقدار یو ځای کوی اوبیائی ښه په‌تیګو باندی میده کوی چـــه دغــــه خوراکی مواد دکونرلون په نامـــه یادو ی‌اود ډوډی او سوړ سک‌سره ئی دانګولی په څیر ترینه استفاده‌کـــوی.

او همدا رنگه دزردالانو زړی‌لمړی په ختینو تبیو باندی ښـــه ننی‌کوی اوبیائی‌مرچ او مالګی سره‌یو ځای په تیګو باندی ټکـــوی او خوراکی مواد ور څخه جوړوی چـــه‌دغه دزړو اودانو یا حبوباتو څخـــه جوړ شوی (لون) یا خوراکی مـــوادعموماً په‌هغه وخت‌کی ترینه کـــار کار اخلـــی کـــوم وخت چی دکـــارپه‌لوری ورځی نو دډوډی او سسړ- سك سره یو ځای دځانه سره اخلی‌اوبیا ترینه دضرورت په وخت کی استفاده کوی ښځی او نارینه ئـــی‌دژوند په ټولو کارونو کی په‌شر-

يكه يو ځای اوړه په اوړه کـــارکوی. اوپه ځينو منطقو کی بیاپه کارونوکی دښځو رول او اهميـــتزيات دقدر وړ دی.

په غم او ښاديو کی ټول خپلوانيواو بلسره مرستی او مادی کو ـ مکونه کوی اوټول مشکل په ګـډهحل او فصل کوی.

راکړه ورکړه يکی عموماً طبعی پيداوار لکه حيوانات، پنيرونه ، غوړی ،پات، جوار ،غنم ،کلول،لوبياغوزان، امبولوك او وړين لباسو نه دی، استفاده کوی دژوند په ټولوچارو کی لانجی اوکشالی په ولسی جرګو اوفيصلو پريکړو تر ســـرهکوی چهپه ولسونو کی عموماًدکلی دسپين ږيرو مشرانو او روحانيونوپه واسطه صورت نيسی او دجرګو اومرکو لپاره وستلونه او مشخصبامونه موجود دی.

په ودونو کی ولسی محلی هنرمندان لری چهد موسيقی آلات ئـی يوائی ډول، سرنی، چمبی، غجـك‌او شپلی ده .

په ودونو او نورو خوښيو کـیپه بامونوکی اورونه بلوی او شاو خواتهئی محلی سيلونه اونڅاګا نیکویچه دغهسيلونه ځانته فرهنګی بنه لری .

دجرګو اوپريکړو اطاعت يکـــیپه پراخه پيمانه ليدل کيږی اوپه ولسونوکی دراپيښ شوو لانجو اوکشالو فيصله په جرګه او مرکـو ترسره کيږی .

په ولسونو کی داجتماعی نظماودد مشکلاتو دمخ نيوی لپـــــاره (داړ) ياناغی ته زيات احترام لریاوپه هرفصل کیدخپل څارويــــو داذوقی لپارهدغرونو واښه اوبوټیدبيځايه وهلو څخه دولس په ګـډ اتفاق چه ساتونکی ورته انتخـــابشويوی ساتل کيږی تر څوپه سړو اوژمی وختوکی ور څخه استفـــادهوکـــړی .

زيات کارونه ئی لکه کو ټه،کور جوړول په ودونو خيراتو نـو

اونور خوښیوکی دکلی ځوانا نــولخوا لرګی اونور ضروری کارونه اجرا کیږی.

غرونه ئی زیات ځنګلونه لری‌چه ځنګلی میوی پکی هم‌لکه متاك، غوزان ،ګور ګوری ،شنی ممانی ،ګوئیك ولی، چنیك انی ،ین‌شنګری، پرګی، جت‌میوا، اوداسی نوردی.

همدا رنګه په ځنګلو نوکــی‌مختلف طبیعی پیداوار په تاریخــی لحاظ پیژندل شویدی اوپه ولسونوکی دمختلفو ناروغیو لپاره به درمل کی ورځنی استفاده شویده لــری‌پشه یی ولس کلی هریو ځانته په غرونوکی دمالداری لپاره باندی‌لری‌چه د پسرلی په موسم کی د(۳ـ۵) میاشتو پوری دکلی دمعلوم چوپـان‌لخوا ځارل کیږی .کله چه‌د غــره په‌لور دوخت ورځی رانژدی شی‌په‌شریکه خلك وستل معلوم بام‌تــه راټولیږی اود کلی سپین ږیرو اومشرانو لخوا باندی انتخا بیــږی. اوبیا دحرکت ورځ ټاکی په کــومه‌ورځ چه‌د باندی په لور حرکت‌کوی دشپی لخوا هغه چوپان چــه دولس‌لخوا انتخاب شویوی په لوړ بــام ټولوته خبر ورکوی اود سهار لخوابیاهر څوك دځپلو ځارویو سره حرـ کت کوی دغه ورځ په پشه یانو کی‌د(چیل) په‌نوم یادوی چه تریــوی اندازی پوری ماشومان اوښځی هــم‌دځپلو ځارویو سره تریو معیــــن حده پوری ورځی.

په باندوکی یواځی خوراکــی‌مواد دجوارو اوره دی چه دچوپانانو لخوا پخپله وتیکو په تبیو پخــول‌کیږی .کله چه سوړسك پوخ شی نوبیائی دخامو شدو سره‌ئی خوری‌دوی کوشش کوی چه ګرمی شیدی ونه خوری دخامو او تازه شل شوی‌شدی خوړل دصحت لپاره ګټور ګنی په باندوکی دشیدو څخه ئی یواځی‌انیرونه جوړوی.چه ځانته مشخص او فرهنګی ظروف دپنیرونو دجوړولوپاره لری چه‌د جوړیښت نـــوم او

ساختمان به باب‌می پشه یانو کـی‌دصناعت تر عنوان لاندی مطالـــب نشر شویدی استفاده کوی.

ځنګلونه ئی (دطبیعی پیدا وارله کبله غنی دی مرخیړی یاسمارق چه پشه یی ژبه کی ورته (ګوماړ)وائی په مختلفو ډولونو پیداکیږی چه‌هر یوئی ځانته جدا رنګونـه‌اوجدا خوند لری او همدا رنګـــه (ساختمان او جوړښت له کبلـــه‌هم توپیر لری لکه شان ګـومانـا) خوره بوش ،وشه ګومانا، کړیك ـګومانا، کړوتیك ګومانا په نوم یاد وی چه ځینی ئی په ځمکه اوځینی‌ئی په تازه ځنګلی ونوکی چه‌پشه ئی ژبه کی (سولهنچ اوماړ) ونه پـه‌نامه یادیږی پیدا کیږی چه‌د ځینو مرخیړیو یا سمارق وزن دیو مـــن‌څخه تر دری منو پوری رسیږی چه خوند او همدا رنګه ساختمان ئـــی‌دغوائی دورون دغوښی په څیر وی پیدا کیږی چه‌د ځینومرخیړیو څخه‌طبیعی درمل هم جوړوی لکه (دشان ګومانا‌او) او دسترګـو درنځ لـپاره‌استعما لوی داچه اکثره پشه یـان مالداران دی نود جانداری په‌خاطری‌په غرونو او ځنګل لرونکو ځایو کی ژوند کوی حتماً دطبیعی پیدا واروپه ماهیت اود ضرورت په وخت‌کی داستفادی په غرض (دخپل ژرنـده‌ضروریتونه ئی پوره کړیدی او د وخت سره‌سم ئی ترینه استفـاده‌کړیدی ځانته محلی شاعران لـری چه عموماً‌ئی بیسواده دی مګـــــرشعرونه او سندری جوړ ولای شی اوکله کـله هم دهنر مند په څیـرخلکوته په محلی موسیقی آلاتـــو سندری او هنر نمائی کوی.

فرهنګی بنه‌ئی زیاته غنی اوهمدا رنګه دقهرمانی او باتـــوری داستانونه چه‌د خارجی اشغا لګروپه مقابل کی دخاوری دتمـامیت او ساتنه‌کی په باتوری جنګیدلی دی‌چه‌د دوی حماسی داستانو نه دیو خولی څخه وبلی خولی ته ولســی‌شاعرانو ژوندی ساتلی دی دسوچه اوغنی فرهنګ په‌لرلو سره مختلف‌دودونه لری‌چه دپشه ئی‌ولس په‌ادب

او فولکلورکی ژوندی او خونـدی پاتیدی اوپه ښکاره ډول په ولسو نوکی لیدل کیږی .

سنګتراشی یا دډبر وتوکـل ،لرګی، او دخاورو څخه په مختلفو هنرونو مختلف لوښی جوړوی اوپه ښکلو مجسموئی ښکل کوی.

په عمومی ډول دپیشه یی وروړملیت دفرهنګ دودی اوتکامل لپاره پـه تیرو فیوډالی اوما قبل فیو ډالـــی ورستــــو نظـــامونو کـــی نـه یوازی داچه کار ندی شوی بلکـه دتحقیر په سترګو ورته کتل شویدی مګر دثور څنځیر ماتونکی انقلاب په نتیجه کی ددوی فرهنګ هم دنورو شتو وروڼو ملیتونو سره یو ځـــای دتکامل لاره پرانستلی نو غواړم چه دننګرهار ولایت دپیشه یانو دفر ـهنګ په باب دغه مطالب ګرانـــو مینوالو ته وړاندی کړم.

# سوچه فرهنگ پشه یا نوکی

زموږ گران هیواد افغانستان دمختلفو ملیتونو څخه جوړ شویدی چه هریو ملیت ځانته جلا اومشخص خصوصیات لری. مگر په سر کښی یو افغانی فرهنگ تشکیلوی چه هریوی جلاو بیلو خصوصیاتو په لرلو سره په اجتماعی ژوندکی دخپل فرهنگ او کلتور له کبله په خپل پلرنی وطن افغانستان کی خپل ژوند ته دوام ورکړیدی چه دغه سوچه اومنل شوی فرهنگ په ټول افغانی فرهنگ کی تر اوسه ژوندی پاتی دی اوپه ولسونو کی ورته دقدردانی په سترگو کتل کیږی چه عمده برخه ئی یواځی په افغانی فرهنگ پوری اړه لری. چه دهغو دسالو څخه جرگی مرکی دی. دلته ماته دموقع په استفاده زموږ په گران هیواد افغانستان کی دپشه ئی ورور ملیت په فرهنگ کی چه څه مطالب می راټول کړیدی غواړم گرانو لوستونکو ته ئی په گوته کړم.

**داڼ یاناغه :**

داچه غرنی سیمی پشه یان زیاتره مالداران دی او ژوند ضروریتو نه لکه خوراکی مواد شیدی پنیروونه داغوستلو لباسونه لکه پولنگ

ویخ، پایپیچ، سوخولی ،پمبیـــــلا ،شاړی، نمت چه دهریو جـــوړ ښت ځانته ځانګړی خصوصیات لری.

چه ددی لباسونو جـوړښت اواستعمال په باب ئی په پشه یانو کی دمالداری داهمیت په باب) تر عنوان لاندی یو څه مطالب راټول کـړی البته چه هغه هم په لازم وخت کی دنشر امیید لرم.

په پشه یانو کی هغه ضروریتونه چی په اجتماعی فکر ترسره کیږی دهغه په اطاعت زیاته پابندی لری اوقدردانی یی کوی.

داچه زمونږ مطالب په داڼ کی دی ددی نه یوه یادوه ورځی مخکی دکلی دکاندیدار او یانائی لخــــوادکلی په منځ کی په لوړ بام په زوره غږ کیږی اومعلوم ځایته چه هلته ولسی جرګه فیصله کیږی تـــول ځوانان سپین ږیری ،ماشومـان اوحتی ښځی ورته دبامونو نه سیلونه کوی یو ځای کیږی ټول ځوانـــان ،سپین ږیری سره معلوم دناستـــی ځایونه چه عبارت (وستلونو) اویادکلی مشهور بامونه چه هلته د هیمشه لپاره غونډیږی یو ځــاۍ کیږی مشران او سپین ږیری په منځ کښی اوځوانان ورته ولاړی وی.اود (داڼ) یاناغی لپاره لازم تصمیم نیول کیږی چه مثالونه ئی پــــه لاندی ډول دی.

۱ـ دپسرلی په موسم کی دزراعت او نورو سبزیجاتو دساتنی په خاطر ټول مالدارانو ته خبر ورکول کیږی چه خپل څاروی دزراعت څخه وساتی تر څو زراعت ته صدمه ونه رسوی ټول مالداران دی خپل څاروی باړو نو ته چه دباندو څخه شباهت لری یوړل شی چه باړونه عموماً کلیو ته نژدی وی اوهمدا رنګه هغه مالداران چه د څارویو شمیرئی کـم دی ساتنه او پاملرنه دی وکړی. تـرڅو دبل ځمکی ته ضرر ونه رسوی.
۲ـ ددی لپاره چه ژمی او بارانـــی ورځو کی دحیواناتو دمشکل سره مخ نشو نژدی غرونو او ځنګلونو څخه دی لرګی بوټی اولرګو څخه داستفاـ

دی منع اعلانوی. ترڅو دژمی پــه موسم کی دمشکل سره نه مخ کیږی او همدا رنګه دنور اجتماعی کارونوښه والی لپاره فیصلوته رسیــږی دټولو نظر یووالی وروسته فیصله کوی اودسر غړونکو لپاره جــرم تاکی دفیصلی اوجرم دټاکلو ورو..سته یوډله ځوانانو انتخابی ډول د کلی مشرانو لخوا دا دانړو) په نوم‌جوړیږی چه د هغه مشرهم چــه (جشتا' یعنی مشر په‌حیث ټاکی‌ترڅو دځوانانو په مینځ کی‌نظم وساـ تی دغه ډله ځوانان یا (دانړو)نورو ولسونوته هم معرفی کیږی .اوناغی داینبوډلو خبرهم ورکول کیږی په‌مختلفو موسمو نوکی دغه دود پــه پشه یانوکی ترسره کیږی. او پــه ولسونو کی دقدر په‌سترګو ورته کتل کیږی. چه په‌دی لحاظ هم‌ئــی‌زراعت ،ځنګلونه او نور اجتماعــی مسائیل په‌ښه توګه سرته‌رسوی.

اوکه څوك ددی څخه سر غړونه‌وکړی دغه جوړه شوی ډله دخپــل مشر سره یو ځای دهغه کورتــه‌ورځی اوهغه ناغه‌ئی چه مخکښــی دفیصلی په ورځ انتخاب شوی ده‌بیدون دقید اوشرط څخه تری‌اخلی.
۳ـ ترهغه وخته پوری چه د ولس‌ټول فصلونه نه‌وی رسیدلی بیدون له (دانړ موړیك) خپل فصلونه نشی‌راوړلی کله‌چه ټول فصلونه ورـ سیږی نوبیاهم دکلی کاندیدار یــانائی له خوا غږ کیږی .اود فصلــو دراټولو لپاره ورځ انتخابیږی چــه په‌هغه ورځ بیا سپین ږیری، ځواـ نان، ښځی، ماشومان، دجوارو پــه‌فصل کښی و(ډنده موړیك) اودغنمو په فصل کی (لیهاری) په‌نامه خپل‌پټیوته ورځی اوخپل فصلو په راوړ لو شروع کوی اوپه یواتفاق فصلونه خپل بامونو ته چلوی دوچیــدو وروسته غنم (مړنی) په‌نوم چــه کلی ټول ښځی اوپیغلی یو ځــای کیږی اوپه شریکه په نوبت پــه بامونو په‌خپلو پښو چه‌په پښو ئی پایزار هم‌نه‌وی میده کوی.

## تول یا اندازه کول :

دننگرهار دولایت دغزنی سیمی‌پشه یان عموماً دغلی دانی لکــــه جوار ،غنم ،حبوبات اوحتی وچـــــی‌میوی لکه توتان ،مرخاینو ،عنــاب لپاره دوزن اوتول ښخه استفاده نه‌کوی یواځی د(کاسا) په نوم چــــه مرخانیو ،عناب دونی دډوډونو ښخه دمشخصو نجارانو له‌خوا دښکلـــی نقشو او مجسمو په ښکلولو جوړوی‌چه شکل‌ئی مستطیل ته ورته دی دزیات دوام په خاطر دغورئی مردی‌په مینځ تازه ځیری کوی او (کاسا) یاپیمانی لپاره تری کمربند جوړ وی‌چه دوچیدو وروسته زیات کلکیږی اوکاسا دماتیدو امکان کم کیږی .دکاسا دپیمانی علاوه (دمتکی) پــه نوم عموماً برنجی گیلا سونو اوجامو نوپه ښیروی چه‌دکاسا ښلورمــــه برخه تشکیلوی یعنی ښلور منگـــی‌یوه کاسه کیږی اوشل کاسی غله بیا (لشتیا) په نوم یادوی. عمومــاً‌دغلی دانی تعداد په من او خروار نه معلوموی یواځی په لشتیا گانـــو باندی حسابی کوی.

دکاسا گانو شمیر په ولسونوکی زیات کم وی یواځی په هغـــو کورو نوکی چه نسبت زیات ځمکی‌لری او یا کوم مشخص کورکی چه دولس کوم مشهور سړی وی مو ـجودوی .په هر ولس کی کاســـه معلوم مقدار غله پری اندازه کیږی‌زیات اوکم توپیر پکی نه لیـــدل کیږی اوچه غله خرڅوی نودیو کاسی غلی قیمت دولس او خلکولخوا معلومیږی اوبیائی خرڅوی د همـــدی‌قیمت له‌مخی‌په‌خر ښولو اقدام‌کیږی چه معلوم شوی قیمت ښخه پورته ښوك نشی خر ښولای.

## ـ په غم او ښادیو کی مـــادی‌مرستی !

په ښادیو کی کله‌چه دغزنی سیمی‌پشه یان دخپل واده لپاره تیـــاری نیســـی. نو تقریباً دکلی تول ځوا ـنان په‌اتفاق دکلی معلوم وستل یـــا بامونو ته‌چه دپخوا نه یکښی دغونډو اوپریکړو ځایونه دی راټــو ـ

ليږي اودهلك كورته دلرگيودراوړلو لپاره ورځ انتخابوی دمعلـــوم شوی ورځې په سهار وختی تـــولځوانان دخپلو رسيو چه په پشی ژبه ورته شونټك وائی دتبرگی ســره‌چه کار ضروری وسايل دی. پـــه انتخاب شوی ځای‌کی سره راټوليږی‌اوپه يو اتفاق دراړی په‌نوم دهلك كورته دلرگی دراوړلو لپاره غره‌ته‌ورځی چه‌هلك ياد واده كوونكـی لخوا ورته ډوډی پخول كيږی .

كله چه په‌غرونو كی ټول ځوانان خپل گيډی وتړل نوپه شريكه يوبل ته بارونه په‌شا كوی اوپه‌يوقطار دكليو خواته حركت كـوی كله‌چه دكلی خواته نژدی كيږی‌نودكلی دخلكو دخبرولو لپاره دقطـار يادډلی مخكښی ځوان په زوره(اگيا)اگيا ،اگيا غږ كوی چه‌دغه غږ بيـا ټول ځوانان په‌شريكه بدرگه كوی.نوپه‌دی وخت‌كی دهلـك يا دواده كوونكی خپلوانی ښځی لكه مـــورترور، خور، ځوانانو مخی ته دگوړی شربت توره وړه لوبيـا غنم چـــه‌يو ځای ئی نتی كړی وی اوپه‌پشه ئی ذبه ورته (دړو) وائی وړی اوپه ځوانانو ئی تقسيم كوی اوهمدا رنگه غوزان په ځوانانو بانـــدی‌شيندی، اودكلی‌ماشومان يی ټولوی دغه ورځ په‌پشه يانو كی (داړی)په نوم يادېږی.

اود واده مراسم رانژدی كيږی‌دالركی يواځی په واده كی مصر - فوی اونورمصرف څخه‌نی دتفيـدی‌په لحاظ ساتی ،اوولا په‌نوم ئی ياد وی. چه دواده په‌ورځو كی دمحلی‌ننداړو رڼا لپاره ترينه استفـــاده كـــوی.

## په بامونو كی اور بلول :

دغزنی سيمی پشه يانو چه‌دخپل‌واده ټول ضروريتونه پوره كـړل نودخپل واده دمحلی دمراسمو داجراپه وخت‌كی دشپی لخوا په معلـــوم اومشخص بام باندی دنارينـــو اوځوانانو دساعت تيری او رڼائـــی لپاره اورونه بلوی اوشاو خوايـــی‌محلی سيلونه لكه گډا او سندری

ویل کیږی محلی موسیقی آلات ئیډول ،سرنی اوچمبی دی چه پشه-
یان چمبی ته (دب)وائی اوهر یو محلی شاعر په کورکی دځان سره

(دپ) ساتی چه یوائځی دسندرو په ویلوکی (دپ) څخه استفاده کوی
او فرهنګی موسیقی اله ئیده او همدارنګه ښځی ئی ځانته

دواده محلی مراسم لری چه رڼا لپاره (شونتی) چراغچوب چه
پشه یانورته کانی وائی واړه‌واړه‌تلی کوی اوپه ختینو چراغونو باندی

ایږدی اوهغی ته اور ورته کوی‌اوشاو خواته ښځی ورته محلی
سیلونه او سندری وائی چه کله یوائځی اوکله دوه یادری ښځی

یوه سندره په ګډآواز وائی اوهمدارنګه په ودونوکی ټالونه چه دواده
دنورو ضرور یاتو سره یوځای دغره‌دمعلومو ونو څخه چه پشه یان

ورته (بلی) وائی جوړول کیږی‌چه دښځو لپاره ځانته او دنارینولپاره
ځانته جوړول کیږی نارینه ئی په لویه اوجګه ونه‌کی اوښځی په دالا

نوکی په لوی بش‌کی دوغبرګی‌اچوی چه‌دوه ښځی یوطرف اودوه
ښځی بل طرف ته‌کینی اویو بل‌سره پښی ټینګوی اوددوښځو لخوا

ذنګول‌کیږی اوسندری وائی دښځوګډا پکی زیات کم لیدل کیږی مګر
په‌هغه وخت کی‌چه دناوی کالی‌ورته وړل کیږی دهلك خپلوانی

جنکی، نجونی، د(رنګشو کوړیك)په نوم چه په سر کی شکور او په
شکور کی دناوی پوړنی ایښودل‌کیږی ګډا کوی چه ځانته محلی
بنه لری.

په ودونو کی دښځو لخوا عموماًدهلك او جنکی لپاره جوړ شوی
سندری ویل‌کیږی په بامونو کی‌اور بلول دپخوانه شهرت لری او
کله چه ځوانان دواده کوونکی‌لپاره په حشر اوپه اتفاق لرګی
راوړی دغه لرګیو رڼائی زیاته‌او سکاره‌ئی کم وی.

## دپټکي، خولي اوملا تړل :

دننگرهار او کونړ دولایت‌مربوطدغرنی‌سیمی په ځینودواړو منطقـو کی ښځی دهر وخت لپاره خـولـی‌اوپټکی دنارینو په څیر په سرکوی چه تور رنگ اودپټکیو ساختمان‌ئی‌فرهنگی بڼه لری اوخپلی ملاگانـی دوړیو وریښمو څخه جوړ شوی کمربندو نو تړی چه‌دغه منطقی ښځـی نسبت نارینو ته‌په اجتماعی چارواو دژوند دضروریتونو پوره کـولو لپاره زیات دستاینی وړدی ځکـــه‌تل په کارونو بوخت وی دغه ښځی دتل لپاره د ځان‌سره چپړیگان ،کجاوی،او کاری په‌نوم دغره دځنگلـی بوټو څخه جوړ شو لوښی په خپـل‌شاو سر باندی دځانه سره گرځوی اوخپل ضروری شیان اودکار وسایل‌او خوراکی مواد پکی ایږدی اوبارو نه‌هم په خپلو اوږو اوسرونو‌باندی‌یو ځای څخه بل‌ځای ته وړی.ددوی داغوستلو لباسونه دنورو لباسونوسره زیات توپیر لری چه زیاتـره سانونه اوختاگانی دی او لباسـو‌نه‌ئی دوه غبرگی گنډل کیږی او دگنډلو ورسته دغره ځنگلی بوټی‌پواسطه چه تور رنگ لری دهغه داوبو دجوش پواسطه تور رنگونه‌ورکوی ددی لپاره دوغبرگی گنـډی چه‌دوی دتل لپاره په‌غرونو کـــی‌دڅارویو لپاره دازوقی‌راوړل دلرگو تهیه کول اونورو کارونو کی ځنگلوکی زرله منځه نځی.

## یاران میك (حشر) :

حشر یاران میك په پښه یانوکی دپخوا نه تراوسه پوری پـــه ولسونو کی ژوندی پاتیدی چه په‌شریکه یواوبل سره دکارونو پـــه کولوکی مرسته کوی اوکارئی ورته برابروی .مثلاً :په‌کور جوړولوکی. دپټیو په جوړولو او کرلوکی .امـاپه واده او خیراتو نوکی دهر کار لپاره بیله نه‌حشر څخه کـومـك‌او مرستی په کارونو کی ددوی‌فر- هنگ دی. که‌دچا کور یا ځمکـــه‌دجیولوجیکی حوادثو په اثر خرابـه

اوله منځه لاړه شي نو دداسې کارونو د سرته رسولو لپاره نجار چه نجاران هم په ولسونو کی ځانته معلومی کورنی لری غوښتل کیږی او ورسره دکلي ځوانان او سپین ږیری چه زیاتره ئی نژدی حمسایه وی راټولیږی اوپه کارکی ورسره مرسته کوی. اوهمدا رنګه په نورو درنو کارونو کی چه یوائی اوځانته دجوړولو قدرت ونلری نود یاران میك په نامه حمسایه ګان راغواړی اودکار دجوړولو لپاره ور ځنی مرسته غواړی .

دغه کار کونکو ته یوائی دوډی او پنیرونه ورکوی اوترهغه وخته ورسره کار کوی تر ځوکارئی خلاص شی حشر په پشه یا نو کی ډیر ښکلی فرهنګی بڼه لری او په یواتفاق هرکار ترسره کوی.

**راکړه ورکړه :**

**یا اخستیل خرڅول :**

خرڅول عموماً په پشه یانو کی په وعدو او پور ورکول کیږی او په نقدو اخستل پکی زیات کم لیدل کیږی که څوك خپل څاروی یاغله دانه دکور جوړولو ځنی لرګی اویانور ضروری مواد خرڅوی اخستونکی تری دوعدی تپوس کوی چه وعدی هم دوه فصله دی چه یوئی دجوارو فصل دکوی تکاا او دغنمو فصل (دګوم پیلا) کوی تکا کله چه دجوارو په فصل کیچه ورسره یوځای لوبیا کرل کیږی اود لوبیا پلی سره شول نو معاملی شروع کیږی اوهمدا رنګه دغنمو په فصل کی چه کله غنم ځیږشی نو قرضداران چلنی پسی خاوند ته په خپل وخت سپاری، په قرضونو کی هم زیات طبیعی شیان لکه غله دانه څاروی لرګی ،شات ،پنیرونه نور شیان ورکول کیږی دپیسو اوسکی راکړه او ورکړه پکی کم لیدل کیږی .

**په اول سهارکی ډناوی لیدل :**

کله چه پشه یان واده وکړی نودواده داولی شپی په سهارکی ورته





دکلي ښځې اوپيغلې راځي او ناوې ته د (شکون) په نوم هګې ،ګوړه او ځنې ځنې ورته دخپل توان په اندازه پيسې ورکوي چه بيرته دجنې لخوا دوه چنده يعنې که دوه چکې ګوړه يادوه دانې هګې ورکړي وو څلور بايد ورکړي. اوهمدا رنګه دهلك ياكوراوخپلوان نارينه جنګي ته ته (شکون) ورکوي چه د ناوې له خوا ورتــــه دستمال درانجو کڅوړې چه پشه ئي ژبه ورته (سورمدانيك) اودوريښموڅخه جوړ شويو او رانجه پکي اچول کيږي اوهمدا رنګه دزرې کولتيك) په نامه خولې ګانې چه طلائي رنګ تار اود (کل باتو) څخه په جلا ډول ګنډل شويوې نارينو خپلوانو تـه ورکول کيږي چه ددې خوليو سـرکول په پشه يانو کې زيـات رواج لري اوپه جلا خصوصيا توګنـــډل کيـــږي .

**چيل :**

داچه اکثر پشه يان مالـدارا نډې اودژوند تول ضروريتونه ئـې په مالدارې سرته رسوي اوهـــم ولس ځانته په ځنګلونو کې مشخص بانډې لري چه دډيرې مودې راهيسې په شريکه دمالدارې لپـاره جـــوړ شويدې چه دغه بانډې دولسې بانډو په نوم يادوې اوخپل دولس تـــول څاروې په يو اتفاق په معلوم موسم کې ساتې دپسرلي په موسم کې تول ولس ځنګلو اوبانډو ته دخپلـــو څارويو دوړلو لپاره په معلومـــو وستلونو او بامونو ته يو ځاى کيږي اومعين ورځ ورته معلوموې چـــه دهغه وخت درسيدو سره سم دولس مشران وستل يامعلوم بام ته چـــه هلته عموماً جرګې اومرکې کيــــږي را غونډيږي اودخپلو څارنيو دوړلو لپاره ورځ او چوپان ولس انتخابوې اوپه هغه ورځ چه حرکت کـوي. سهار وختې مالداران خپل څاروې چه عموماً غويان وى دکوره راباســـې اودکور تول غړي ورسره تر هغــه ځايه پورې چه ديو ځاى کيدو ځـاى وى ورځې اومحلي سيلونه اوسنــدرې وائې .

دغه ورځ پشه يان دچيل په نوم يـادوي.

**لام ناری :**

لام ناری په پشه یانو کی دولس تولو خلکوته ډوډی ورکول کیږی کله چه څوك واده اویا خیرات کوی نومخکی څو میاشتی خلك خبریږی چه نومړی واده یا خیرات کوی دکلی تولو نارینو ته دخپل ماشوما نـو سره ډوډی یالام ناری ورکوی کلی ته ډوډی ورکول چه خیرات اوواده کی یو اجباری شکل دی که څـوك توان ئی هم ونلری دنورو څخه پور په ځان منی اوډوډی ورکوی او ځینی ځینی لادگل دینی په نامه بیا تولی دری ته چه ځایونه ئی دپخوانـــه معلوم دی ډوډی ورکوی. گل دینی عموماً پخوانی مالداران اویو څـــه زیات ځمکی خاوندانو لخوا صور ت نیسی گرچه زیات ځمکه دجغرافیایی موقعیت له مخی په پشه یانو کـــی ډیر کم لیدل کیږی ځکه دوی پـــه سختو اوتړه لرونکی ځنگلو کـــی استوگنه لری اما دخپل نام اونشان دژوندی ساتلو لپاره تاوان په ځان قبلوی اوخپل نوم په ولس کی نه کموی پدی لحاظ اجباری شکل ئـــی غوره کړیدی اوخلك ورته دقـــدرپه سترگه گوری .

**واړنی :**

په پشه یانو کی چه څوك واده اویا خیراتو نه کوی نو څو ورځـــی دمخه دکلی سپین سری ښځی اونږدی خپلوان دغنمو دپاکولو لپاره چه عموماً غنم مصرفیږی غوښتل کیږی اوپه یو اتفاق دښځو لخوا غنم پاکول کیږی چه دپاکولو وسیله ئی د(چچ) په نوم یادوی اوهر څوك ئی دځانه سره دکوره راوړی کچیری واړنی دښادی لپاره وی نودکلی ښځی او پیغلی ورسره محلی سیلونه اوسندری وائی چه یوه ورځ ورسته دکلی ځوانان په شریکه په اتفاق دغـــه پاکه شوی غله په خپلـــو اوږو اوپـــه خپلو شاگا نوئی ژرنـــدوته داوړه کولو لپاره وړی دغنمـــو دپاکولو ورځ دواړنی په نوم یادوی.

**اسخات :**

اسخات په پشه یانو کی اجباری‌شکل لری چه زیات خلک‌ئی په خپل ژوندکی مالداران څاروی او دهقانان‌یو څه ځمکه دگور کفن (پــه نــوم) په ښکاره ډول معلوموی او زیــات‌خلک لادپخوانه خپل قبرهم جــوړوی دلویانو په اسخات کی پیسی او دماشومانو په اسخات کی گــډوډه او مالگی ویشل کیږی اوهــر څـــوک‌کوشش کوی چه ښه اسخات ور-کړی تر څو دمړی حق په دنیا کــی‌پاتی نشی.

**شام شیرینی :**

په پشه ئی ولس کی کله چــه دچاپه کورکی مړی وشی دمړی ټول خپلوان دمړی کورته راځی په اول‌سهار کی دده په کور کی هیڅ‌ډوډی نه پخول کیږی دکلی او ولس خلک:دوی کورته ډوډی وړی اوهمدا - رنګه ډیری نژدی خپلوان لکـــه‌ورور، تره، ماما، دتره زوی، ماما زوی ،حتی دتره زامنو سره هریوبیل دځانه سره‌کورونو ته د(منهه- میمان) په نامه میلمستیا ته وړی‌اوغم ورسره شریکو اود مړی خپلوانو قدردانی اوزړه تسل ورکوی چــه مړی ښخ‌شی نودمړی دکور لخــوا خیراتو نه کیږی اود مازدیگر لخوادولس ټولو مسجدوتـــه ډوډی او پنیرونه په شکورونو کی اوه‌ورځی‌مسلسل وړی او وروسته لــه اوو ورځو تر څلویښت ورځو پوری بیا‌یو شکور ډوډی او پنیرونه یواځی هغه مسجد ته چه‌د مړی کورتــه نژدی موقعیت ولری وړی. همسایه گان اونژدی خپلوان مړی کورته په‌ازله شپه ددی لپاره چــــه زیات اندیښمن وی اوغمجن وی د(ازروا)په نامه سوچه اواصیل پشه ئـــی خوراکی مواد برابروی اود دوی‌کورته ئی وړی تر څوزړه‌ئی طاقت پیدا کړی پشه‌یان په‌غم اوښادی کـــی‌یودبل سره مرستی او کومکو نـــه کـــوی.

## ائید چنګړا :

ائید چنګړا په پشه ئی ژبه انیداختر اوچنګړا دمست وزګوړی معنی ورکوی اوپشه یانو عموماً دا رواج‌دی چه که دچاپه کورکی نجلی پیدا شی نودده خپلوان لکه ترور، مامـازوی اونور نژدی خپلوان دماشومی جنی غوښتنه کوی اود ګوړ مونیك‌په نامه لاسونه پورته کوی اومحلی مراسم اجرا کوی اوکله کله داسی‌هم کیږی چه اولاد لاپه ګیډه کـی وی‌چه دمیره انتخاب ورته کیـږی‌چه کچیرته ستالور وشی نو زمـا زوی‌ته به ئی ورکوی کله چه لاس‌پورته شو اوجنی ورکړه معلومـه شوه نود هلك دمور لخوا جنکی ته د(لیاړ) په نامه دسپین‌زر هیکل چه ځانته فرهنګی ساختمان لری جنـی‌ته ورکوی اوبیا ی نوی خپلـــوی شروع کیږی دهلك دپلار لخوا په‌ځارویو کی‌ښه مست وزګوړی دجنی داختر ائیدچنګړا په نامه انتخابیږی‌اوډیر ښه ساتل کیږی چه‌دغه ځار وی بیا دلوی اختر په ورځ‌په ښکلورنګونو ښایسته کیږی اوپه غاړه‌ـ کی ورته دسپین زرو زیورات‌اچوی‌اودښځو سره چه ځانونه ئی سینګار کړی‌وی او ورسره دپیلیك په نامه غنم، هګی ،شیرینی ،په شکورو نو کی اچوی اوپه سرونوئی ایښی وی‌دزوم پلاس جنی کورته ورځی دغه ځاروی دائید چنګړا په‌نوم یادیږی‌اوهر یوپدی ورځ‌دجنی کورته وړی.

## انار په دروازه وهل :

کلـه چـه پشه یانـو کـــی‌څـوك واده کـــوی نـــو دواده دضروریاتو سره یـــو ځای غټ اوښکلی انار دواده دکالیو سره یـــو ځای ساتی او واده په‌ورځ‌کله چه‌ډولی کور دروازی ته ورســـوی اوکورته دننوتو په وخت‌کی انـارپه‌زور اوقوت دروازی په‌سرنـــ برخه کی وهی چه‌سیل ته‌ئی نار ینه اوښځی ولاړوی که انار ډیر زری زری شونو دوی عقیده لری‌چه‌دوه نسل به‌زیات اودخلکو لپاره‌به دکتبی سبب شی چه ورسته بیـــاناوی په دروازه کی ننوځی اومحلی سیلونه شروع کوی.

**ولادروان :**

دننگرهار ولایت مربوط ددرنوردمنطقی اود کنړ ولایت دغـــرنـــی سیمی پشه یان خپل لرگی په تـــول‌او وزن نه خرڅوی یواځـــی دروان او ولاپه نامه خر څوی دوران‌عموماً‌دخیریو شاخچی چه دڅاریو دخوراك لپاره‌ئی راوړی وی‌کله چه پاڼی‌ئی‌څارویو وخوړل نو شاخچی‌ئی دگړی په نامه تړی اوهغه په معین ځای‌کی خره کوی چه‌د خریی انـــدازی عموماً دکور جوړ شوی دیوالونه‌دی.

اودغه خرہ بیا د(دروان) پـــه‌نامه یادوی ،اوولا هم دهستوگنـــی په کوټه کی ددوستنو په منځ کی‌چه دپشه یانوتول کورونه دچتونو دکلك والی لپاره په کورونو کـــی‌ستنی لرږوی او دوه ستنو په‌منـــځ کی‌لرگی ایږدی‌چه‌دغه لرگی‌بیادولاپه‌نوم یادوی نو کله چه دا لرگی خپل معین ځای ته ورسیږدل نوبیائی‌قیمت معلومیږی ددی لرگیو قیمت اوخر څول عموماً ددریم گړی لخـــوامعلومیږی چه‌خر څونکی او اخستو-نکی دواړه پری قناعت کوی .

**پیلیك :**

کله چه پشه یان خپل اولاد نـــامزاد کوی نوتر هغه وخته‌پوری چه واده‌ئی نوی کړی دجینی کـــورتـــه په‌هر لوی‌اختر‌کی دملك خپلوان‌ئی ښځی اوپیغلی چه ځانونه ئی‌سینگارکړیوی اوپه شکورونو کی غنـــم ، کلول گوړه ،هگی اود جنی لپـــاره‌کالی ایږدی اوپه خپلو سرونوایښی چه محلی سندری وائی وړی دغـــه‌دودتر هغه وخته دوام لری تر څو واده‌ئی برابر شی اودغه دود پـــه‌پشه یانو کی دپیلیك په‌نوم یادیږی اوهر څوك زیات کوشش کوی چـــه‌ډیر اوښه پیلیك برابر کړی تـــر څو نوم اونښان ئی په ولس کـــی‌ښه خپور شی.

**نوئیدل :**

دغرنی سیمی ټول پشه یان‌دلوی‌اختر دقربانی په‌خاطر دکال پـــه

شروع کی ښاروی چه عموماً نروزان او ګڼی ساتی دغه ښارووته کوشش کوی چه ښه چاق اوجنګی تربیــــه کړی ځکه بیا داختر په سهار دیــو کلی ښاروی دنورو کلیو دقــر بانی ښارویو سره دجنګولو په خاطر چه مختلف رنګونه ئی پری وهلی وی وړل کیږی چه د سیل اولیدو پــــه خاطرئی دولس ځوانان ولاړوی دغه اوبی ترهغه وخته پوری دوام لری تر څو داختر لمونځ شروع شی.

داختر دلمانځه ورسته هغـــه څوك چه د قربانی ښاروی حلالوی تر هغه وخته چه قربانی ئی نوی کړی خبری نکوی دقربانی ورسته دحلال شوی ښاروی اور میږ غوښه پخوی او ورته ئی ورکوی.

دقربانی غوښه به دری بــرخــوویشل کیږی یوه برخه ئی ځانتـــه بله برخه ئی خیرات اودریمه برخه ئی دنوئیدل په نامه ښځینه خپلوانو کورونوته لږ لږ لیږل کیږی دغـــه غوښه عموماً دماشوما نوپلاس لیږل کیږی چه هغوی بیا دغوښی پـــه مقابل کی ورته ننی چه پشه یـــان ورته دړو وائی ورکوی دغـــه ننی عموماً غنم ،توره لوبیا ده ورکـــوی دقربانی شوی ښاروی سر ملا تـــه کلمی نداف اوپوستکی ئخه ئی ګوډی داغوستلو لباس چه ګیډك نومیږی جوړوی دغه دواړه جوړ شوی شیان بیایو اوبل ته د ضرورت پـــه وخت کی هم ورکول کیږی .

**چلم اری :**

دپسرلی په موسم کی چه کلـــه دغره څخه واوری په ځنګلو کـــی کم شی نوپه معین وخت دکلی ځوانان معلوم بام اویا وستل ته چـــه عموماً دجرګو اومرکو لپاره دپخوانه معلوم دی یو ځای کیږی او غـــره څخه په یواتفاق دشو نتیو دراوړلو لپاره ورځ انتخابوی چه تر هغـــه ورځی پوری هر څوك دځان لپـــاره غرنی لباس اودجوار واوړه برابروی ځکه په غرونو کی یوائی دجــوارواوړه خوړل کیږی په هغه ورځ چه

دغره په لوری حرکت کوی تــــول‌ولس‌په محلی مراسمو سهار وختی
په یو اتحاد دغره لوری ته حــرکت‌کــوی اوپه غره کی دڅو ورځـــو
لپاره شونتی برابروی اوبیا پـــه شریکه دکلی ښځی او پیغلی پـــه
معـــلـــو مـــــه ورځ دشـــو نتـــی‌دراوړلو لپاره ورځی او شـــو نتی
چـــه پـــه غره کـــی‌دنارینو لخـــوابرابر شویوی په خپلو سرونــــو
باندی په (تونجا) نومی لوښی کی‌چه د ځنګلی بوټو څخه جوړ شویوی
راوړی دغه ورځی په پښه یانوکی(چلم اری) په نوم یادوی .

**استه روپی وئیك :**

کله چه په واده‌کی نور محلی‌مراسم ترسره شی نود واده په دو-
همه ورځ دتخته نیك سورالیك په نامه گوراوا خپل دواده نوی کالی
داغوستلو لپاره معلوم چنی تـــــه دځوانانو سره چه محلی سیلونـــــه
او ساعت تیری په کولو سره ور-ځی اوخپل دواده نوی کالی اغونـدی
اوخپل دغره ځنی راوړی شنه لښته‌چه امبړ گوندا نومیږی پـلاس او
ځوانان ئی په اوږه کورته راوړی‌او ورته تخت جوړ شویوی پـــــه
هغه باندی کینی اود ولس تــول‌خلك اونور خپلوان ورته راټو لیږی
او یـــو مســی لــــوښــی ورتـــه‌خــــوا تـــــه ایـــږدی د ولس
او کلی خلك دخپل توان په اندازه‌گوراوا سره مادی مرستی کــــوی
او ځینی ورته څاروی ورکوی دغه کومك په پښه یانو کی داسته‌روپی
وئیك په نامه یادوی ترڅو هغـه زیان اوتوان چه ورته رسیدلی‌دی
بیرته په شریکه پوره کوی .

**ائید گرئیك :**

په اخترکی گرځیدل، په لـوی‌او واړه اخترونوکی داختر په اوله
شپه کی پښه یان دمیلمنو لپـاره‌دوډی‌اونور خوراکی مواد برابروی.
دوی کوشش کوی چه دغه دوډی‌په‌ډیر ښو دبرینو او ختینو تبیو
باندی چه دمعلومو سنګترا شانـولخوا جوړ یږی پخه کوی چه دغـه

تبی‌په پشه یانوکی دکرواړاو ختینی‌تبی دکول په نامه یادوی.
سهار وختی داختر په ورځ اول‌ماشومان ،بیا ځوانان او سپین‌ږیری په نوبت دهرچا کورته ورځی اوهرچاته داختر مبارکی ورکوی چه مبارکی عموماً دټولو دلو لخوا په یوآواز ویل کیږی چه پشه یان په خپله ژبه وائی ایدو مبارك بیاددکور خاوند چه ډوډی ،په شکورکی ایښی وی که‌هر څومره ډوډی‌ئی‌خوړلی وی‌بیا هم مجبوردی چه پدی کورکی هم دجوړه شوی ډوډی څخه استفاده وکړی چه خوراکی موادئی‌شدی پنیرونه شات دی چه‌دغه دودځانته په پشه یانو فرهنگی بڼه لری.

**مړنی :**

دغرنی سیمی ټول‌پشه یان خپل‌دغنمو فصل دریبلو ورسته په خپلو شاگانو چه سیځ په نامه‌اوږدلرگی کی دوزو وژغنو څخه جوړ شوی رسیی گانی چه‌په پشه ئی‌ژبه دغه رسی گانی د(شونتك)په نوم یادیږی اوښځی په خپلو سرنوخپلو بامونو ته چلوی اوپه بامونو کی دوچولو ورسته دهرچا دغنمودمیده کولو لپاره دکلی‌ښځی،پیغلی اونجونی سره په شریکه یو قطارچه یو اودبل په اوږوئی لاسو نه اچولی وی په خپلو پښو چه په‌پښوئی پایزار هم نوی میده کوی په‌پشه ئی ولس کی غنم په پښواو خپلو بامونو کی میده کیږی همسایه گانوکی دهرچا غنم چه‌مخکی وچشی نوښځی سره خبروی اوپه یوه اتفاق ئی میده کوی.

**کوتنی :**

دجوار وپه فصل کی هم‌چه‌کله دجوارو ماتولو وخت رانژدی شی نود کلی هغه ولسی لاری چه‌عموماًدبامونو لخوادکلی دیوسر ته‌شروع اودکلی بلخوا سره پوری بامونوکی لاری موجود دی توپدی ورځو کی دغه وخت لپاره دغه لاری‌دبتی‌په‌نوم بندیږی اوهر څوك خپل‌جوار په خپلو باموکی اچوی او دلسو ورځو ورسته د(کونچی) په نوم د

کلی ښځی په یوه اتفاق راټو لیږی‌اوهر څوك په شریکه جوار سپینوی بیائی لس ورځی لمرته اچوی‌اوکله‌چه ښه‌وچ شو نودکلی ځوانان په شریکه راټولیږی اودغره لر گـــی‌کوته کونو په‌واسطه چه دخیـږی دلرگو څخه جوړ شویوی او (ډسـا) په نوم‌یادیږی‌ټکوی اوجوار تری‌راـ باسی دغه ورځ په پښه یا نوکی دکوتنی په‌نوم یادیږی او لوبیا هـم دپټیو څخه دټولو او وچیدو ورسته دکوتنی په‌نوم ټکوی چه‌دا عموماً دکلی دوړو ماشو مانو لخوا ترسره کیــــږی .

## ستره دانا :

کله چه فصلونه ټول شو نـوپه‌ولس او کلی واړه ماشو مـــان هلکان اوجنکی هریو په‌ولس کی‌دهر چا کورته ورځی غنـم ،جوار لوبیا،توره لوبیا، وریجی سره یوځای‌ورکوی اودکلی په کوڅوکی په په ختمینو دیگو کی چه پښه یـان‌ورته ډیرا وائی پخوی اود کلـــی ټول ولس چه په لاری تیریږی ورکوی دغه خواړه دسته دان په‌نوم یادیږی اوپه هرکال کی دغه دودترسره کوی.

## وی‌لها :

په پښه یانوکی (وی‌لها) کلمه‌دخوشحالی څخه اخستل شویده کله چه څوك واده ،سنت‌گیری او یـادخپل زوی نوم ایږدی نود هغه ورـ ځی څخه دری ورځی مخکی دهلـك‌ور، خور، ترور چه دکلی او همسا یگانو نجونی اوپیغلی‌چه ځانونه ئی‌سنگار کړیوی په یوه ډله چه‌مشـر ښځه ئی مخکی اونور ټول ورپســی‌روان وی په ولسو نوکی دخپلوانو او دوستانـو دخیږولو لپاره د(وی‌.لها) په‌نوم گرځی چه‌دهر چالخـوا ورته مبارکی ورکول کیږی اوهمدارنگه دهرچا کورته چه ورشی‌ورته دشکون په‌نوم هگی گوړه ورکوی‌اوهمدا رنگه دکلی سلمانی چه پـه پښه ئی ژبه ورته ډوم وائی دنار ینو خپلوانو او دوستانو لپـــاره علحیده لیږل کیږی چه‌دغه دخوښی لپاره‌خبرول د(وی‌لها) په‌نوم‌یادوی.

**الهندو :**

کله چی په پشه ئی ولس کی مړی وشی دکلی سلمانی نائی زر خبروی چه داخبر رسان دالهندو په نامه په ولس کی گرځی او خلـك نامه یادیږی.

**انجویك بیغا :**

دواده‌دشروع اوله شپه دانجویك‌بیغا په نامه یادیږی چه ددی‌شپی دمازیگر لخوا خپلوانی ښځی اودکلی‌سپین سری ښځی دواده کونکـــی کورته راغونډیږی اوهر یو ځانته په کوځوکی دواده دډوډی دپخلولو لپاره ځای او همدا رنگه دختـــوتبی گانی چه عموماً پشه یان پـه ختینو اوتیکوتبیږ باندی ډوډی‌پخوی‌چه دمخه ئی دواده لپاره رانیولـــی وی دډوډی په پخولو شروع کـوی‌ترڅو چه‌د ولس داندازی پـــوری پخه شی دکور په یو کنج کی پخــه شوی ډوډی کوټه کـــوی د واده دډوډی دپخولو ورځ د(انجویك‌بیغا)په نامه یادیږی .

**تخته تیك شورالیك :**

**په پشه یانو کی کله چه څو ك**واده‌کوی نودواده دشـروع پـــه اول سهار دلمر ختو وروسته گوراواته تخت جوړوی اود تخت دپاسه دواده بړستن اړدی او گوراوا په‌زوره راوړی اود تخت لپاسه ئـــی کښینوی. خپلوانی ښځی پیغلی دده‌شاو خواته گرد چاپیر گـر ځــی او محلی سندری وائی چه دغه سندری‌عموماً دواده کوونکی لپاره جوړشوی وی دگوراوا او ناوی صفت اوهمدارنگه ژوندی پکی منعکس کړیو ی گرچه گوراوا زیات کوشش کـوی‌دښځو له‌منځه ووزی مگر ښځــــی اوپیغلی ئی نه پریږدی.

وروسته وربانډی سپیــن دوریجی‌چه‌اول ښه پستوی بیائی تکـوی او اوبه ئی راباسی اوبه گوراوا . باندی پاشی ترهغه وخته پری پا-

شل کيږی ترڅو ګالی نی سپين شی‌اوپه دغه وخت‌کی بیا تاویدو نکی ښځی دغه فولکلوری سندری ټـول‌ښځی په شریکه وائی امبو باری ، بشاری، قند تو ګوډاوا، قند ئـی،ګوراوی دری ځلی دا فلکلــو ری سندره‌تکراروی بیاګوراوا ځان باسی‌وروسته ښځی تخت او بړستن دور یجو اوبه دنکریز وسره چه دری‌یاڅلور شکورانه هم ورسره وی .

(دمحلی هنرمندانو سره یو ځای‌چه دکلی ځوانان او ماشومان ور- سره وی دجنی کورته ورځی اوپه‌هغه ځای کی هم دغه اوبه په ناوی شندی اوپلاس ورته نکریزی وهی‌دوریجو دغه اوبه په پشه‌یانو کی (لهمبووريك) په نامه یادوی .پـه‌دغه‌وخت بیانجونی د(رنګ شکـور یلن) په نامه محلی نڅاوی کوی.چه‌پـه شکورو نوکی دناوی کالـــی ایښودل شوی وی دځانه سره‌دناوی‌کورته وړی کله چه‌دجنی کـورته ورسیږی جنی هم‌په تخت کیښنوی‌اودهلك په څیرورنه مراسم اجرا کـــــوی .

**لولی :**

دواده اوله شپه چه دغـــه‌شپه په پشه‌یا نوکی (رنګ ویل) په نامه یاد یږی چه‌پدغه شپه کی‌دکلی ټول نارینه ځوانان سپیـــن ږیری په‌یو معین بام باندی چـــه‌دپخوا نه دجرګو فیـصلو او ساعـت تیریو په وخت‌کی ورڅخه ګټـــــه‌اخستل شویده یوځای کیږی.اومحلی هنرمندان چه‌دهر کلی څخه راټول‌شویوی محلی سندری او ګډا ګانی کوی چه موسیقی آلات‌ئی ډول، سرنی.، چمبه اوغجك دی چه درنا په خاطر هم لرګی اوشونتی ګانی چه‌اورونه ئی هم په بامونو بلول‌کیږی استفاده کوی دامحلی سیلونه تـرهغه وخته کوی ترڅو چرګان اول بانګونه وکړی نود چرګ دآواز داوریدو سره سیلونه قراروی اود لږ وخته ورسته ټول سره یو ځای‌چه ښځی ،پیغلی او ماشومان وی دمحلی هنرمندانو سره یو ځای په‌لاره‌کی ډول، سرنی اوچمبی پــــه

شریکه وهل کیږی او ځانته واچونه لری دجینی ګوزته ورځی چــه دخسر په بام باندی بیانو تــر هغه‌وخته نځاوی کوی تر څو چه بام ئی سوری شی کله چه بام سوری شونوبیا ورته دجنئ دمور پــه واسطه (دړو) په نوم چه توره وړه لوبیــااوغنم سره یو ځای په‌اوبو کــــی نرموی اوبیائی ننی کوی په خلکو باندی ویشل کیږی چه‌دغه شپــه په پشه‌یانو کی دلولی پــه نــــوم‌یاده شویده.

## دشدو پیمانه او اندازه کول :

داچه عموماً پشه‌یان په غرونواو ځنګل لرونکو سختو ځایو کــی دپخوا نه تراوسه پوری دخپل‌ژوندد‌پایښت لپاره دمالداری څخه دژوند زیات ضرور یتونه نکه داغوستــولباسونه خوراکی مواد او همدارنګه دکور نور ضروری شیان چه‌د دوی‌دژوند ضروریات دی تراسه کــوی اود پخوانه تراوسه پوری دمالدارو‌په‌منځ کی دشدو تبادله او نــــوبت چه‌دغه نوبت په پشه‌یا نو کــــی(لاور) په‌نوم یاد شویدی تر ســره کیږی اوشدو څخه پنیرونه او نورخوراکی مواد چه جوړېښت او ساـ ختمان په باب‌می یو څه‌مطالب لیکلی‌دی دلتـــه زمـــو نــــن مطلب دشدو پیمانه او اندازه ده .

داچه مخکی مو هم اشاره کړیده‌چه پشه یان تول دژوند دضرور ـ یتونه په مالداری ترسره کوی چه شدی‌ئی په یوه اتفاق په‌خپل منځوـ کی په نوبت خصوصاً مخکی هغـــه‌چاته چه‌د څارویو شدی‌ئی زیـــات وی ورکول کیږی چه‌دغه ویش اونوبت عموماً دچوپانانو لخوا صورت نیسی دشدو داندازی او دمقدار دمعلومولو لپاره دتول او وزن څخه کار نه‌اخلی کله چه شیدی دنار ـینو لخوا دلرګیو څخه په معلـــوم لوښی کی‌چه په پشه‌یانو کی ورته (دوینی) وائی اودتوت‌د لرګیو څخه ئی په ښکلو نقشو او مجسمو جوړ‌کړای شوی وی لشل کیږی اوبیایو لرګی را اخلی اوپه شدوکی کښته‌کوی ترکوم اندازی پوری چه لرګی په‌شدوکی ډوب شو هغه ځای پــه‌تیکه یاکوم بل‌تیره شی غو څــوی

دغه لرګی په پښه یانز کی د(کټی) په نوم یادیږی چه دغه کټی عموماً په کلیوالو کی‌د څارویو شدولپاره‌استعما لیږی اماکله چه دپسرلی په‌موسم کی دولسونز څاروی غرونوته چه‌دهر ولس په غرونو کی ځانته بانډی موجود وی اود پخوانه‌جوړ شویدی یوړل شی نوپه بانډو کښی دشدو اندازه زیاته وی ددی‌شدو دوزن لپاره ځانته د(انټ په نوم لوښی دی چه‌دا‌رګیو څخه دمعلومو نجارانو لخوا جوړ یږی او یوائی چوپانانو په کورونو کی موجود وی دشدو دمقدار دمعلومو لو لپاره تری کار اخستل کیږی.

**امبر ګوندا :**

دمانړوشته شاخچه. غرنی‌سیمی‌پښه یان چه کله واده کوی نو د واده نه مخکی دجتی په کورکښی‌دری‌رنګه اصیله تیکه، د(امبر ټوټا) په‌نامه یادوی چه دهری ټوټی‌اندازه‌ئی هم تقریباً (یو چارك) وی دتیکو دواړه خواوته سپین زروزیورات او سپینی مشهدی روپی ټکوهی کله چه‌واده شروع شی‌دواده په اوله ورځ سهار وختی دکلی ټول ماشومان د(امبراری) په‌نوم وستل اوپه معلوم بام ته راټو لیږی اوبیا په یوه اتحاد غره‌ته دمانړو دشاخچو دراوړلو لپاره ورځی چه‌پدی ورځ دګوراوا کورته‌دخسر دکور څخه دنور لباسو نو سره چه‌د واده لباس دخسر دکوره‌ورکول کیږی دری واړه تکی دزیو راتو سره هلك کورته راوړل‌کیږی‌کله چه ماشومانو دغرنه څخه مانړو شاخچی راوړلی په هغه کی ښکلی‌اوښایسته شاخچه په شریکه ګورا وا ته انتخابوی اونوری شاخچی‌په‌ځوانانو ویشل کیږی. دګوراوا دغه شاخچه د(امبرګوندا) په نامه یادوی‌راخلی اودری رنګه تیکه پری تړی اودمحلی مراسمو داجرا وروسته دکلی ځوانان راټو لیږی دګوراوا د اغوستو لباسونه رااخلی اودکلی‌نائی سره یو ځای معلو- می چینی ته دغسل اودخپلو لباسونو سره ورځی نو امبر ګوندا هم

دنورو لباسونو سره یو ځای ورلکیږی دلباس اغوستو لو وروسته کله چه لونګی په سرو ترې نوځوانان په نوبت سره ترکلی پوری ګوراوا په اوږو باندی سورچه امېږ ګوندا ئی پلاس کی وی وړی اوپه تخت ئی کیښنوی چه دمخه ورته جوړ شویږی دناستی سره‌سم خپلوانی ښځی، پیغلی دده شاوخواته ګرځی اودمحلی سندره چه ځانته فرهنګی په ولسونو کی شریکه دی‌وائی اوهمدا رنګه هلك او جینی لپاره جوړ شوی سندری هم ویل کیږی چه ټول ښځی ورته ولاړ او سندری داوریدو لپاره متوجی‌کیږی‌او سکوت (اخطاروی پدی سندره‌کی دهلك اوجنی صفت اوهمدا رنګه خپل ژوندئی پکی هم منعکس کړیوی فولکلوری سندره‌ئی چه عام شهرت‌اوپه‌واده کی‌ویل کیږی داده (امبو ، باری، بشاری،قندته ګوراوا،قندئی‌ګوراوی) ددی‌سندری ویلو ورسته هلك ډیر په‌زوره دښځوله مینځه وزی اود نارینو منځ ته ځی.

**موږینی :**

په غرنی سیمه کی غله دانه یواځی غنم جوار او وربشی کرل کیږی نودغرنی سیمو پښه یان چه‌کله خپله کرنه وکړی نو ټول ولس هریو کلی‌کی ځانته‌په وستلوکی سره‌یو ځای کیږی اودخپل فصل اوکرنی دساتلو دپاره ناغه چه پښه یان ورته دانې وائی ایږدی ترڅو فصلونه ئی دڅاروو او نورخرابیدو څخه وساتل شی نو کله چه فصلونه ئی پاخه شی بیا ټول‌ولس په وستلوکی یو ځای کیږی او دجوارو دماتولو لپاره‌ورځ انتخا بوی اوهغه ناغه چه مخکی ایښودل شویوی ټول ولس په شریکه‌ماتوی‌اوسهار وختی ټول ولس نارینه او ښځی چه نارینه ئی کجاوی اوښځی‌ئی کاریګانو سره‌چه‌د ځنګلی بوټو څخه جوړ شویوی دجوارو دماتولو لپاره ورځی او دجوارو وړی د بوټو څخه ماتوی او نارینه ئی په‌کجاووکی اچوی اوپه خپلو شاګانو

نی‌معلوم اومشخص ځایونو ته‌راوړی‌دغه ورځ په پشه یانو کی دمونیني په نوم یادوی.

**لیهاری :**

دغنمو ریبل هم‌په پشه یانو کی‌په‌یو اتحاد دناغی دماتولو ورسته تول ولس په شریکه نراو ښځی‌سهار وختی دخپلو غنمو دریبلو لپاره ورځی چه‌د غنمو دریبلو ور...سته ریبل شوی غنم بیل بیل دګړا په‌نوم تړی اوبیائی دلرګو ښځه‌جوړ شوی‌سیخونو چه‌پشه یان‌ورته (ګوم سیخ) وائی دغه جوړ شوی‌کړاپکی دپنځو ښځه تر اتو پوری‌کښته کوی اوپه خپلو شاګا نوئی معلوم‌ځایوته راوړی دغه ورځ په پشه یا نوکی دلیهاری په‌نوم یادوی

**کنچګات وینی :**

دبړستنی جوړول هم‌دواده ښځه یوه‌میاشت مخکی دګوروا لپاره جوړ ول کیږی چه‌د واده کونکی بستره‌پدی ورځ کی جوړول کیږی چه دی ورځی لپاره دهلك تول خپلوان دهلك دمور، خور یاترور چه دکلی نور نجونی ورسره او ځانونه ئی‌سینګار کړیوی غوښتل کیږی اوپه معلوم ورځ کی ورته یو ځای کیږی‌اود واده کونکی بستره په شریکه جوړوی پدی‌ورځ‌هغه ښځی چه‌راتو لشویوی واده کونکی ته پیسی، ګوړه، هګی، چه دځانونو سره ئی‌راوړی وی دشکون په‌نوم ورکوی ورځ په‌پشه یانو کی دکنچګات‌وینی په نوم یادوی.

**رای کاسا :**

کله چه پشه یان خپل فصلونه یعنی‌غنم اوجوار وټکوی دپاکولو ...وسته ئی‌یو ځای رشه یا خره‌کوی‌اولپاسه ورته هګی لوریاانارایږد ی او...ائی دلرګیو ښځه جوړ شوی پیمانوچه پشه یان ورته کاسا وائی او دننګرهار ولایت مربوط پشه یان‌ئی دغلو دانو دوزن او اندازی‌لپاره

ترینه کار اخلی په پیمانه کولوشروع کوی اوله پیمانه غله خور
لور دحق په نامه بیل اچوی او ورته ورکوی دغه غله دانه درای کاسا
په نوم یادوی.

**نوئیدل :**

په لویو اخترونو کی هغه څوکچه قربانی کوی نود خپل قربانی
غوښه دری برخه کوی یوه برخه ئیدخیرات بله برخه ئی ځانته اودر-
یمه برخه ئی دنوئیدل په نوم خور،لور، ترور اونور نژدی ښځینه
خپلوانو کورته لیږل کیږی دغوښیدغه لیږل دنوئیدل په نوم یاد وی
چه دهغو لخوا بیاهګی ،ګوړ اوننیورکول کیږی عموماً دغه غوښه د
ماشومانو په واسطه یوبل کوروته وړل کیږی .

**پوش اری :**

دغرنی سیمی ښه یا په خپلزراعت کی دحاصلاتو دزیاتوالی په
خاطر دځارویو دسری، سرګین څخه زیاته استفاده کوی نودفصل په
معلوم وخت کی په کلی کی همسایه ګان یوبل سرهداشر په ډول یو بل
سره کومك کوی اودغه دځارویوسره په کجاووکی چه دکجاو سا-
ختمان ئی ځانته او ښه یان ئیدپوش چپړی په نوم یادوی نارینه
ئی په خپلو شاګانو او ښځی ئیپه تونجا ګانوکی چه دغرنی ځنګلی
بوټو دلښتو څخه دکاری په شکلساختمان لری په خپلو سرو نو
پټیو ته وړل کیږی دسرو دغه دچلولو ورځ دپوش اری په نادمه
یاد وی.

**کلن ګاسا :**

په کلی او ولسونو کی دخلکودسر، بزیری اونور اجتماعی ضرور
یتونو دسرته رسولو لپاره سلما۔نیان ځانته قام اوطایفی وی چه
دهغو سره دکلی هرکور دهر نارینه په مقابل کی یوه پیمانه غله

دانه چه پیمانی ته پشه یان کاسااود لرګو څخه دمعلومو تجارا نـو لخوا جوړیږی اودغلی دانی دوزن‌اومقدار لپاره ترینه کار اخلی‌سلمانی ته ورکول کیږی دغه غله دانه‌چه‌سلمانی ته به‌هر فصل کی ورکـول کیږی دکلن کاسا په‌نوم یادوی.

**پاړئیك نوبت :**

داچه دغرنی سیمی پشه یـان‌هریو په‌کور کی دجانداری لپـاره دمالداری څخه کاراخلی نو دمالداری‌طریقو له‌مخی پخوانی دوداودستور لری دبزو دساتنی او څرلپاره په‌کلی او ولس‌کی دپسرلی په‌موسم کی دکلی‌ټول خلك په وستل کـی‌دورځی له‌مخی په غرونو او ځنګلو نوکـی دبزو څر نوبت تاکـی‌چـه دهر څاروی پـه مقـا بـل کـی یـوه ورځ تـول څـاروی‌غره‌ته وړل کیږی چه‌دغه وړل‌دپاړ ئیك نوبت په‌نوم یادوی.

**ویـر :**

په کلی اوولس کی که‌دچا په‌کورکی مړی‌وشی نودمړی‌ټول‌خپلوا- نی ښځی راټولیږی اوګردود ریږی‌چه‌یوه‌پکی ستاینی کوی اونورورته غوږ نیسی اوټول بیا خپل مخونـه‌وهی دمخ وهلو سره ټوپونه هـم وهی دغه مخ وهل دویر په نـوم‌یـادوی .

**شام شرینی :**

په‌کلی او ولس کی که‌دچاپه‌کورکی مړی‌وشی نودمړی دښخو لو ورسته په ماښام کی دکلی تـول‌مسجدوته ډوډی او حلوا په شکور ونوکی دخیرات اوشام شیرینی په‌نامه وړی دغه ډوډی اوه ماښامـه مسجدوته وړل کیږی اوبیا د اوه‌ورځو څخه‌تر څلویښت ورځو پوری یوائی دکور خواته نژدی مسجدته‌ډوډی حلواوړل کیږی چه‌دغه‌ډوډی دشام شیرینی په نوم یادوی .

**دوان :**

په کلی او ولس کی‌که څـوك‌نوی واده کوی نوپه هغه وخت کی چه‌ناوی کورته راوړی دناوی مخی‌ته ددروازی په‌مخ کی‌په ختین کنډ

ولی کی دکور څوخاشي دچرګا نــوبنهکی اود غره ځنګلی بوټی پانیچه پشه ئی ژبه کی ورته (امبړوائـــی)داور سکروټو سره یو ځای دناوی مخی ته دودکوی دغه دودته ټـول‌خپلوان لمنی نیسی اوکله چه ناوی پری تیره شی نو بیا ګوراوا لخواپه‌خپلوپښو وهل‌کیږی اومیده‌کیږی‌دغه دود کول ددوان په نوم یادیږی.

**ورئیك نوبت :**

په غرنی سیمی پشه یا نوکـــی‌کرنه ځانته خصوصیات لری اوپه مختلفو طریقوئی کرنه او پاملرنـــه کیږی ورئیك نوبت چه دا بودلګولو نوبت دی په کلی او ولس کی په‌هغه وخت‌کی چه‌اوبه کم‌شی نــود کلـــی خــلــك معلـــوم ځای ته یو ځای‌کیږی اودابو نوبت او ویش کلی او ولس خلك په وستلو کـــی‌دځمکو دخړوبولو لپاره معلو مـــوی داوبو داویش اونوبت دورئیك‌نوبت‌په نوم یادوی چه‌هر یوبیا خپلـــه ځمکه پرخپل وار اوبه کوی.

**ګانس اری :**

داچه دغرنی سیمی پشه یـــان‌اکثراً مالدار دی نودمالداری دساـ تلو په طریقه هم خاص مهارت‌لری‌په پسرلی موسم کی دکلی او ولس خلك ټول په یوه اتفاق دکلی وستل‌ته یو ځای کیږی اوپه شریکه دغره څخه دخاروو آزوقه یاغرنی وښـــودراوړلو اود ناغی دماتولو لپاره‌چه مخکی ئی‌دبوټو دخرابوالی دمخ‌نیوی‌لپاره ایښی وی ورځ انتخا بـــوی اوهــــر یو دوښو دراوړلو لپـــا ره‌وسایل چه عبارت دسیخ څخه دی جوړوی‌اوپه معین ورځ‌سهاروختی ټول‌په شریکه معلومو ځایوته ورځـــی اود لرګو په سیخانو کی ئی پــــه‌خپلو شاګانو دغره څخه کلیو تـــه راوړی اوپه لمرکی دوچیدو ورسته ئی دژمی دازوقی لپاره ئی په ګنجا ګانو کی ساتی چه‌دغه ګنجا ګـــان‌دخپلی هستوګنی چه دری پړیـــزه کورونو کی ژوند کوی په لاندنی پوړ کی ساتی غره‌ته دتګ دغه‌ورځ دګانس اری په نوم یادوی.

**واړ چتيك :**

په کليو او بانډو کی ځوانان دخپلو کارونو دخلاصيدو وروسته د ماسپښين اومازيگر په منځ وخت کی ټول دکلی ځوانان معلوم ځايو ته چه دپخوانه ورته جوړ شويوی يو ځای کيږی اوهلته په معلوم وزن تيگه دواړچتيك په نوم ارتوی دتيگو دغه ارتول دواړچتيك په نوم يادوی.

**سر قبر :**

دغرنی سيمو په پښه يانو کی که دچا په کورکی مړی وشی نومړنی په انديښنه کی دکلی او ولس ټول خلك په کارونو اودنورو ضروريتو نو په پوره کولو کی مرستی کوی اوهمدا رنگه دمړی دښخيدو ورسته اوه سهاره دمړی نژدی خپلوانی ښځی اودکلی ټول سپين ږيری قبرتــه ورځی دغه تگ په پښه يانو کـــی دسرقبر په نوم يادوی .

**نائيتك ناری :**

په کلی او ولس کی که دچا په کورکی اولاد پيداشی د کلـــــی معلومه اوپوهه ښځه چه مخکـــی ورته غوښتل شويوی دماشوم نوم پری کوی او فولکلوری طبابت ور.سته خپل کورته ځی چه د نوم دپری کيدو دناری په نوم سوچه اوفرهنگی ميلمستيا ورته برابروی چه دنــوم غو ځونکی لپاره يواځی دچرگی سينه ورکول کيږی دغه ميلمستيادنائيتك ناری په نوم يادوی.

**چال ډرئيك :**

کله چی دچا په کورکی نارينه اولاد وشی نودماشوم په اوه ورځنی کی دکلی سلمانی غوښتل کيږی اوټول خپلوان راغونډ يږی او محلی سندری او مراسم اجرا کوی اوبيــاورته سرخرئيل کيږی دماشوم ويښتان دصحرائی بوټی چه پښه يان ورته مشبيرم وائی يو ځای دعمسا يــه نجونی لخوا نيول کيږی چه دغــه جيلی ترا خره پوری دده دخور په

نوم یادیږی اوپه هر لوی اختر کی بیا ورته دخور دبرخی په نوم غوښه (نوئیدل) هم استول کیږی.

**لاور :**

داچه زمونږ پښه ئی ورونه زیات مالدار دی او دژوند زیات ضرور یات په مال اری تر سره کوی نو د پسرلی په موسم کی خپل څاروی غرو او باندوته په یو اتفاق وړی اود کلی معلوم چوپان لخوا چه چوپانانو ته دڅاروی په بدل کی یوه پیمانه غله لکه جوار ،غنم،ورکول کیږی په باندو کی دڅاروی دشدو څخه دشدو مقدار له مخی هریو په نوبت چه اکثره نوبت چوپانانو لخوا معلومیږی غوښتل کیږی اودشدو څخه ئی په غرونو کی یوا ځی پنیرونه جوړیږی چه د شالای ختك په نوم یادوی دغه باندو ته دڅاروی خاوند غوښتل دلاورپه نوم یادیږی او همدا رنگه دژمی په موسم کی په کلیو کی هم همسایه گان په خپل منځ کی شدی تبادله کوی اود لاور په نوم ئی یو بل نوبت کوی چه دشدو اندازه هم یوځای په لرگو چه گټی او همدا رنگه دلرگیو څخه جوړشوی لوښی چه انټ نومیږ ی یو بل په منځ کی دشدو تبادله دلاورپه نوم یادیږی.

**سته دانا :**

په پښه ئی ولس کی که دچاماشوم نوی غاښونه وخیژی نود ماشوم دغاښونو لپاره اوه رنگه دانه باب لکه غنم ،جوار ،لوبیا، وریجی، کلول، می، ماش په معلوم مقدار یوځای کوی اوپه ختښیو لوښو کی پخوی چه دپخیدو ورسته ئی په کلی او همسایه گانو باندی ویشل کیږی اوهمدا رنگه دسنامی مړی په صورت که هغه څوك چه ژوندی وی دغه دانو څخه دیك پخوی دغه دانو پخول دسته دانا په نوم یادیږی .

**یام اری :**

داچه حشر اوپه کارونو کی یو بل سره کومك او مرسته زمو ږ

دپشه ئی ورونږو پخوانی دوددی نوکله چه څوك نوی آبادی اوکور جوړوی نودکور جوړولو هغه لرګی چه ضرورت ورته لری چه کلی کی څوا نان او خصوصاً همسایه او خپلوان ټول په یو اتفاق دغره څخه دلرګیو دراوړلو لپاره ورځ انتخابوی اوبیاپه معین ورځ سهار وختی دغره په لوری حرکت کوی او دضرورت وړلرګی دغره څخه راوړی، چه دوی ته یواځی یو وخت ډوډی دناری په نوم ورکول کیږی .

**شوپار :**

په پشه ئی ولس کی که دچا په کورکی نارینه ماشوم ۳-٤ کلن شی نو کورنی ورته مخکی نه غنم او څاروی دمصرف او خوښی لپاره برابروی بیائی دهلك دمور، خور ،ترور لخوا چه د کلی نور واړه نجونی ورسره او څانونه ئی سینګار کړیوی خپلوان او دوستانو کوروته دویلها په نوم ګرځی اوشوپار په نوم ئی په معلومه ورځ دعوت کوی چه بیا دغه ښځی ته دهرچا لخوا دشکون په نوم پیسی، هګی ،کوړه ورکول کیږی بیاپه معلومه ورځ دکلی پوه نائی یا سلمانی دماشوم دشو پار یاسنت کیری لپاره چه پدی لاره کی مهارت لری غوښتل کیږی بیادلرګی پیمانه چه پشه یان ورته کاساوائی اوغله دانی پری معلو میږی ایږدی اوپه هغه باندی دستمال اچوی اوهلك پری کینوی اوپه چاړه باندی ماشوم سنت کوی اود وینو دریدو لپاره یواځی دخوشایی سرګین ایره پاشی او یواځی همدی ایرو څخه دجوړیدو لپاره کار اخلی اوغوڅ شوی پوست ئی دفیروزی سره یوځای دماشوم په ښی پښه کی تړی دغه ورځ دشوپار په نوم یادوی .

**کوچارا :**

داچه دغرنی سیمی پشه یان په خپلو ودونو کی کلی او ولس ته دلام ناری په نوم ډوډی ورکوی نوکله چه څوك واده کوی نودواده دشروع کیدو څخه یوه ورځ مخکی ټول خپلوانی ښځی اوپه کلی کی

سپین سری ښځې دډوډۍ دپخولو لپاره چه عموماً په ودونو کې ډوډۍ ورکوی راغونډتل کیږی چه هریوه ئې په بیلا بیلو ختمینو تبیو باندی بیا دغه ډوډۍ پخوی او همدا رنګه خپلوان نارینه دکور او واده دنورو ضروریتونو په پوره کولو او جوړولو کې برخه اخلی دغه غونډتل شوی کسان دکوچارا په نوم یادیږی چه په نورو خونبیو کې هم غونډتل کیږی.

**دوره اتیك :**

کله چه ځوك نوی خپلوی یاشیرینی خوری وکړی نودجنی دپلار لخوا دهلك ټول خپلوانی ښځې او نارینه غونډتل کیږی اوورته میلمستیا برا بروی چه د هلك خپلوانو لخوا بیاجنی‌ته هریو دخپل توان په اندازه ځوك پیسی، ګوړه ،هګـی اود هلك‌دپلار ،مور لخوا دسپین‌زرو ګانه دشکون په نوم‌جنی‌ته ورکـول‌کیږی دغه ټولیال اوجنی کورته تلل ددوراتیك په نوم یادیږی .

**دراړی :**

په پشه ئی ولس کی‌چه ځوك واده‌کوی دکلی ځوانان دواده شخه شل ورځی مخکی ټول په یو اتفاق سهاروختی غره‌ته ځی اوهلك کورتـه لرګی راوړی کله‌چه دکلی اوولس‌خواته نژدی کیږی، نوټول ځوانـان په یوه آواز (اګیا، اګیا، اګیا،)دکلی‌خلکو دخبریدو لپاره چیغی وهی چه دهلك‌خپلوانو ښځې‌لخوا بیا ددوی‌مخی‌ته شربت، غنم‌اولوبیا وننی پـدوی ویشل کیږی او غوزان پری شیندل‌کیږی دغه ورځ دداړی پـه نـوم یـاد وی .

**پته پیر :**

په پشه ئی ولس کی چه ځـوك‌واده وکړی دواده شخه څو ورځـی ورسته جنی نځپل پلار لخوا دهلك‌دخپلوانو سره یو ځای دعوت کیږی دهلك ښځینه خپلوان دځان سـره‌اوړه، غوړی، اوچرګان په معلـوم

مقدار اخلی اود جنی دپلار کورته ئی‌دځانه سره وړی چه د جنی دپلار په کورکی ورته میلمستیا ورکول‌کیږی‌دغه واده څخه ورسته لمړنی تـــک پلار کورته دپته بر په نـــــوم‌یـــاد وی.

**پنجیوا :**

دغرنی سیمو په پشه یانو کی‌که څوک مړشی دهغه خیرات لپاره بیاد کلی سپین سری ښځی اونژدی‌خپلوانی ښځی راټولیږی اودغنمـــو ډوډی په ختنو تبی ګانو چه پشه ـ یان ورته کول وائی پخول کیږی او دکلی دټولو نارینو په‌اندازه ډوډی‌پخوی اودکلی دکور هریو غړی په سربیا پنځه ډوډی ورکوی دغـــه‌خیرات دپنجیوا په‌نوم یادوی.

**دوك کړال :**

دپسرلی په موسم کی چه پشه‌یان خپل څاروی غرونو او باندوته دساتلـو په خاطر وړی چه‌دکلـی‌معلوم چوپان لخوائی بیا څارنـــه او پالنه کیږی چه‌دشدو څخه ئی‌یواځی پنیرونه جوړوی دکلی څخه باندوته دڅاروو په لمړی ورځ کی‌دهغه شدو څخه پنیر دوك کـــړال په‌نوم یادوی چه‌د کلی مشرانـــوسپین ږیرو په‌نامه ئی کلی اوولس تـــه لیږی .

**دواس ګورینی :**

په پشه‌ئی ولس‌کی چه څوك واده‌کوی نوکله چه دواده ټول ضرور ـ یات پوره شی نو دواده دکولو څخه‌شل ورځی مخکی دهلك دخپلوا نـــو څخه مشر او معلومدار سړی دجنی‌کورته ددواس ګورینی یـــا دواده ورځـــــی د معلـــو مـــولـــو لپاره‌ورځی اودجنی دپلار او مور څخه د واده دکولو اجازه او ورځ معلو موی‌دغه ورځ په پشه‌یانو کی دواس ګورینی په‌نوم یادوی .

**نامجیوال :**

په‌کلی او ولس کی که‌دچا په‌کور کی‌ماشوم پیداشی نود څلو ـ

ينبت ورځو دپوره کیدو څخه دوه ورځې مخکې دوستان او خپلوان د
کلي دسلمانی پواسطه خبریږی چه بیاپه معین ورځ ټول خپلوان نارینه
اوښځې دماشوم دنوم دایښو دلـــو لپاره راځي اوهریو دځانه سره پسی
هګی، ګوړه، دشکون په نوم راوړي‌چه پدی ورځ محلی سندری هم ویل
کیږی اوټول په شریکه دماشوم نوم ایږدی دغه ورځ په پشه یانو کـــی
دنامجیوال په نوم یادوی .

## کات تکینی :

په پشه یا نوکی چه څوك واده‌کوی دواده څخه شل ورځې مخکـــی
دګــــو راوا لپـــــاره کټ جـــوړوی‌چه ددی کټ دجوړیدو لپاره ټول
دوستان او خپلوان دکلی سلما نی‌په واسطه دعوت کیږی اوهر یـــو
نارینه دخپل ځان سره پسی دشکون‌په نوم راوړی او واده کونکی ته ئی
ورکوی دواده‌کټ پښی ځانته جوړونکی لری اوپه ښکلو رنګونو ئـــــی
ښکلی کړیوی راوړی او ورته نجارچه‌هم غوښتل شویوی دګوراوا کټ
جوړوی په‌دغه ورځ غوښنل شـــوی‌کسانوته دواده کونکی لخوا دنـــاری
په‌نوم ډوډی ورکول کیږی دغــــه ورځ په پشه یا نوکی دکاټ تکینی
په نوم یادوی.

# فلکوری روایات

دولسونو او قومونو فرهنگ یا په بله ژبه فولکلور دټولنی له غوره اوملی شتمنیو څخه شمیرل کیږی‌چه په دی‌شتمنیو کی‌دیوی‌ټولنی تاریخی ملی هویت ټولینیز جوړښت اجتماعی راشه درشه او نور کړه وړه شامل دی.

ماکسیم گورکی هم‌پدی مورد کی‌داسی ویلی چی دوولکلور او ولس په ساده الفاظوکی لوی حکمت پروت دی.

پدی ولسی ژوند هنداره کی،دودونه ارزښتونه‌چال چلند،انگیرنی کړنی اودژوند هر راز لاری‌چاری پکی منعکس کیږی.

دفولکلور دخیړنی ساحه ډیرپراخه ده خو عمده برخی‌ئی ولسی دودونه خرافات، رواجونه اوولسی‌ادب لکه متلونه ،سندری ،کیسی اونور دی.

په دغه مطلب کی غواړم په پشه یانو کی کړنی، انگیرنی یا وگړنی روایات چه دیوی اوبلی‌خولی څخه می‌راټول کړی گران لوستونکو ته‌ئی وړاندی کوم.

**بگوی ناری وهل :**

داچه پشه یان اکثره په غرونوکی پراته دی اوغرنی سیمی ئی دمحیطی شرایطو او ځنگلونو په لرلوسره مختلف ځنگلی وحشی حیوانات لری ددی وحشی حیواناتو دجملی‌څخه گیدړه چه په پشه نی ژبه ورته (پیروړیک) وائی او نسبت‌گیدړته لږ دجسامت له مخی وړوکی او اوږده لکی لری نوکله چه نومړی‌حیوان دشپی یا ورځی لخوا په ځنگل کی ناری ووهی که به کلی او ولس‌کی څوك مریض وی نودکلی خلك وائی خدای‌دی‌خیر کړی‌پلانکی مریض‌دی مړنشی. نوهر څوك چه دغه آواز اوری په بلا یامرگ بدرگه اوجواب کوی.

**مار داوبو په سکلو لیدل :**

داخو معلومه خبره ده چه که دهرچا مخی ته مار پیدا شی نوحتمی ئی‌وژنی نوکله چی څوك‌مار داوبو په ښکلووینی نوزیات خوشالی‌کوی‌اود خیر اوښه ژوند سوال اودعا کوی.دوی په عقیده وایی چه‌هر چاچه مار داوبو په ښکلو ولید حتمی ده‌په ښه ژوند به ورته په بر - خه شی.

**اوږه الوتل :**

په کلیو اوبانډو کی ښځی داسی‌عقیده لری چه که‌چیرته داوړو د داغږلو په وخت‌کی لږ څه اوږه دخاکی ښخه والوزی حتمی او ضروری به ئی کورته میلمه راشی نو مخکی‌دمیلمه راتك لپاره تیاری نیسی اوهمدا رنګه دوی عقیده لری چه که چیرته داوبو په اراتولو کی‌په مځکه آواز وکړی یاتك ناری کړی‌وائی چه څوك موميلمه کیږی .

**دکورنی څاروی سراړول :**

داچه زمونږ پشه یی ورونه په‌غرونو کی زیات ژوند کوی اودخپل زیات ضروریات په مالداری ترسره‌کوی نوپه مالداری کی‌هم دعقیدی له مخی دپخوانه پکی تر اوسه روا جونه ژوندی پاتیدی بیانو په کلیو اوبانډو کی که دکوم مالدار په‌رمه کی‌کوم څاروی، سرواړو یعنی اور- میږی تاوکړ نو دستی دغه څـاروی‌حلالوی اوټول خیراتوی ددوی په عقیده که‌دا خیرا ت‌نشی نوپه کورکی‌به ئی غم پیدا شی.

**ددوشنبی په ورځ دسرنه منځل:**

په کلیو او بانډو کی پشه ئی ښځی‌داسی عقیده لری چه‌که څوك پدی ورځ سرومنځی کیدای شی چه ددی‌ښځی ورور مړشی او خصوصاً هغه ښځی چه‌دوه وررونه لری پدی ورځ کی‌سر منځلو څخه ډډه کوی اوخپل سرونه نه پریمنځی .

**دجمعی په ورځ دسرنه مینځل :**

په کلیو اوبانډو کی هغه‌ښځی‌چه لورګانی لری دجمعی په ورځو کی دخپل سر دمنځلو نه ډډه کـوی‌دوی عقیده لری‌چه کچیرته پـدی

ورځ کی سرومنځل شی نــو کیدای‌شی ددی مشری لورته زیان ور ــ سیږی نوپدی اساس دجمعی په ورځ ـ سر منځلونه ډوه کوی.

**دشنبی په ورځ دسرونه منځل :**

هغه ښځه‌چه دری ورونه لری‌نودغه ښځه دشنبی په ورځ خپــل سرنه منځی دوی عقیده لری چه که پدی ورځ سرومنځل شی حتمــی او ضروری به ددی ورونو تــه دســرزیان پیش شی .

**دماشوم پاسنی غاښونه ختل :**

په کلیو او باندوکی که دچا په کورکی دماشوم اول ځل لپاره دپاــ سنی ژامنی غاښونه وخیژی نودکورتول فامیل ئی اندیښمن کیږی دوی داسی عقیده لری چه کچیرته دماشوم اول پاسنی ژامنه تی غاښونه وخیژی دماشوم ماماگان به ئی دغم‌سره مخ‌شی نوسمدستی دماما لخوا ئی دسپین زرو یوه پاولی چه دری‌غاښونه ولری په‌زرگر جوړوی او ماشوم ته ئی راوړی اودماشوم په‌سرئی ځوړندوی اودهمدی ماما لخوا چه پاولی ئی راوړی وی دماشــوم‌په‌سر ځوړندول کیږی‌او ماشوم په سرباندی سپیته وهل کیږی دوی‌بیا عقیده لری چه ماماگان به ئی دغم اوکړاو څخه په‌امان شی اوهغه‌غم چه راځی پدی عقیده اوتوتکه له منځه وړی اوپدی روانی عقیده‌ورته تسل پیدا کیږی.

**دسم نامی مړکیدل :**

ډیر ځل‌په کلیو اوباندو کـــی‌سم نامی یادوه‌تنه دیوه‌نوم لرونکی انسانان زیات لیدل کیږی نو کله‌چه یو له‌دوی څخه مړشی نود پاتی سم‌نامی کورنی ژر خینه نکریــږی‌لمدوی اودهغه قچه گوته پــری نکریږی کوی. اوبیا ورته اوه‌رنگه دانه باب لکه غنم ،جوار ،سره لوبیا توره میده لوبیا، کلول، موشتاماش‌وریجی ،چه زیات مرچ پکی اچــوی اویو ځای ئی پخوی اودښه پخیدووروسته ئی په همسایه گانو ئی ویشی چه‌دغه دیگ به پشه‌یا نوکی (دسته دانا) په‌نوم یادوی او بیا خوړونو ته ورځی او داوبو خواوه‌رنگه صحرائی بوټو یوه یــوه

پانه راتلونکی اوپاتی کس ته ئی ورکوی اوپدی عقیدوی کارو نـو دخطر مخه نیسی.

**دناوی دلاس اوبه :**

دپشه یانو په سیمه کی کـه څوك نوی واده وکړی او ناوی خپل کورته راوړی نوکله چه ناوی دلمړی ځل لپاره خپل لاسونه مینځی دغــه دلاس مینځل شوی اوبه دکور پـه ټولو کنجونو کی پاشی دوی عقیده لری چه ددی اوبو په شیندلو په کور بختور شی.

**باران نه کیدل :**

داخو څرګند حقیقت دی چه داوبو په عدم موجودیت کی دهرشی ژوند دامکان وړ ندی نوپه غرینـوسیمو پشه یانو کی چه کله موسمی بارانو نه ونشی او دوی ته دفصلونو او ځنګلونو دوچیدو خطر په نظر راشی نودټول ولس هغه ماشو مان چه بالغ شوی نوی هلکان او نجونی په ګډه په ګلیو او کورونو ګرځی اود هـر کـور څخه غنم ورکــول کیږی کلــه چـــه دکلـــــی څخـه ئـی غنـم ټـــول کــړل نودغه ټول شوی غنم په معلو مـوتیګو باندی چه دټکولو شیانو لپاره جوړ شوی للده کوی اوبیائی پـــه عام لاره کی یه ختینو لوښو کـــی چه نغری ورته جوړ شویوی پخوی.چه په همدی ورځ بیاد کلی سپین ږیری نارینه اوسپین سری ښځـی دغرولمنو ته په یو اتحاد چه دپخوا نه معلوم ځای دی ورځی اودشتـه نماز په نوم نفلونه دباران دکیدو لپاره کوی اوکله چه بیرته ستانه شی نودغه پخه شوی دللده د ماشومانو لخوا پدوی ویشل کیږی بیادولس دشاو خوا شهیدانو بیر ـ غونه اوکالی په یوپاك اوبه لرونکی ځای کی غوټه کوی تر څو چه باران نوی شوی نه ئی باسی نوکله چـه بارانونه زیات شی نوبیائی راباسی اوبیرته ئی وچوی دوی عقیده لری چه کچیرته دشهیدانو بیرغ یاکالی لمده شی حتمی ده چه بارانونه به وشی اوپدی عقیده دباران دکیـدو امیدونه ورته لری.

**انار په دور شائی وهل :**

کله چه څوك نوی واده کــوی نود واده دنور ضروریاتو سره یـو دانه خوږ انارهم یو ځای کوی او دګوراوا په نوم ئی ساتی نوکله چـه واده شروع شی دواده دمراسمـوورسته چه کله ناوی په ډولی کـی دهلك کورته راوړی او دروازی‌مخی‌ته ئی نژدی کړی نوهلك یاګوراوا دغه انار په‌لاس کی اخلی نومړی‌خپل ښی‌لاس دناوی په‌سر ایږدی‌او بیا دغه انار چه‌کله ناوی دروازی‌ته ننوزی په زوره دغه انار‌دروازی په دورشائی په زور او قوت وهی‌اوکوشش کوی چه‌انار زیات زری ـ زری شی اوبیا پدی وخت کی هغه‌ختڼ کنډولی چه دروازی خواتـــه پکی‌دوان په نوم خشاك دښځی‌ویښتان‌او ځنګلی بوټی مانوته اور اولوګی پکوی وی‌په خپله پښه په زوره‌وهی اومیده کوی‌هر څومره‌چه دغه دواړه ډیر میده اوزری زری شونوپړی خوښی ښکاره کوی دوی عقیده لری چه نسل به ئی زیات شی اودده‌نسل‌په د خلکولپاره ضرروئه رسوی.

**دکور ځاروی خرڅول :**

داچه پشه‌یا نزیات مالدار دی‌اود خپل‌ژوند زیات ضروریتو نه ئی په مالداری ترسره کوی نوکله چه څوك دخپل کور ځاروی خرڅوی نـو دخر څیدو دقیمت وروسته کله چه‌ځاروی دکوره باسی دکور میرمـن ورته په دروازه کی ودریږی اوددروازی په‌خوله کی ځاروی نیسـی او دده دتندی ویښتان راباسی اودکورپه یوه کونج کی ساتـی دوی عقیده لری که‌د ځاروی دسرویښتان‌ونه ایستل اود کور په‌کونج کـی ونه‌ساتل شی نوپه کورکی به ځاروی پاتی نشی او‌برکت به‌له منځــه لاړ شی.

**دوربشو او مانو پانو ویشل :**

په پشه‌یانو کی چه څوك دخپل‌لور دواده لپاره تیاری نیسی نودهر څه نه مخکی ورته یوه پیمانه ور بشی چه پیمانی ته پشه‌یان (کاسا) وائی اود غلی دانی دتول او مقداردمعلومو لو لپاره ترینه کار اخلـی

اولرګی څخه دمعلومو نجارانو پــه واسطه جوړیږی یوه پیمانی وربشو سره یو پیمانه دغره ځنګلی بوټـیچه دمانو په نوم یادیږی اواه پشه ئی ذبه ورته امبږ وائی د وربشـوسره یو ځای کوی دهلك دکالیــو سره چه عموماً دجنی دپلار لخــواجوړیږی دهلك کورته وړی بیادغه وربشی اومانو په هغه ورځ چــه ناوی دهلك کورته راوړی نو بیادغه په ښځو، پیغلو اوما شوما نودناوی لخوا تقسیمیږی پدغه وخت کی هــر څوك کوشش کوی چه زیات ترلاسه کړی ددوی په عقیده وائی چــه دغی مانو ګانو ساتل په کور کـــی برکت زیاتوی اوکه څوك په کورکی دالوګی کړی مرض اومضره حشرات له منځه ځی.

## دناوی دلاس نکریزو خینـــی تختول :

کله چه څوك واده کوی ددوورځومراسمو وروسته دواده په دریمه شپه چه پشه یان دغه شپــی تــه (رنګ وئل) یعنی دنکریزو شپــه وائی په دغه شپه کی بیا دشپـــی ۱۲ بجو څخه وروسته دکلی ځوانان ښځی، پیغلی دمحلی هنر مندانـــوسره چه ډول، سرنی اوچمبی ور- سره وی اوپه لاره کی ځانته واچونه غږوی دنکریزو سره دجنی یاناوی کورته ورځی اودجنی په لاس دمحلی مراسمو داجرا په وخت نکریزی وهی اوپاتی نکریزی په پیغلو او نوروښځو باندی ویشل کیږیچه وروسته هریو دجنی دلاس نکریزو بانـــدی حمله کوی اوتری تختوی دوی عقیده لری چه دغه نکریزی په کورکـــی وساتل شی په کورکی برکت زیا- تیږی او همدا رنګه ددی تختـــول شوی نکریزو څخه چه په کور کـــی ساتل شوی وی دعصبی مریضانـــو له پاره لوګی کوی اود عصبی نارو- غیو دمنځه وړلو لپاره وړښودل شوی دی.

## اولاد نه پاتی کیدل :

په ډیرو ځایوکی لیدل کیـږیچه په ځینو کورنیو بی اولاد پیــدا کیږی اود پیدا کیدو وروسته بیرته مری نوپشه یان داسی عقیده لــری چه دداسی مرګ مخنیوی پدی تر تیب کوی چه کله ماشوم پیدا شی

نو سمدستی ئی را اخلی اود آهنگردوکان ته ئی وړی اود آهنګر دنا ـ ستی په شاو خواکی په ځمکـــه اچوی اوبیا ورته اسپنه ګرموی او ماشوم پری داغوی بیائی دنجار دو کان ته وړی اود نجار دکار ځای‌خوا ته ئی په ځمکه اچوی اوبیا پـــدی‌وخت کی دماشوم غوږ سوری کـوی اوسرو زروکړی چه‌په پشه یی ژبه‌ورته سورن کار ئیك وائی اچـوی دهغه چالخوا چه‌داغ اوغوږ سوری‌شویوی نوم پری هم ایښودل‌کیږی .

**په مانږګانو دخاشاك نښتل :**

په ځینو وختونو کی که‌نا څاپه‌کوم خلی اویا خاشاك دچاپه بانـــو ونښلی نو لیدونکی دستی ورتـــه‌وائی بختورده شه‌کومه روزی به درته راشی نودغه خلی خاشاك رااخلی مچوی اوپه احترام ئی پــه خپل ګرئیوان کی اچوی دوی داسی‌عقیده لری چه‌که دغه خاشاك پــه ګریوان کی وانچول شی حتمی ده‌چه‌د حلال روزی څخه به محـــروم پاتی شی.

**ښی سترګی رپیدل :**

په کلیو او بانډو کی خلك داسی عقیده لری چه که‌دچا ښـــی ستر‌ګه ورپیده حتمی ده‌چه خوشا لی به‌ئی په برخه شی اوکه ددی کورنی څخه څوك مسافر وی نـــودمسافری څخه به راشی اوسفر به ئی بی‌خطره وی.

**په‌آینه کی دشپی نه‌کتل :**

دشپی لخوا په‌آینه کی کتـــل‌دکلی او بانډو خلك داسی عقیـــده لری چه‌که څوك دشپی لخوا پــــه‌آینه کی وګوری عمر به‌ئی کم‌شی نودشپی لخوا په آئینه کی دکتلـوځخه ډډه کوی.

**په روژه‌کی دځه شی خوړل :**

په کلیو اوبانډو کی دروژی‌په‌میاشت کی‌که څوك په‌کومه ورځ‌په سهوه روژه وخوری اوبیائی ورته‌پام‌شی ډیر خوشحاله کیږی ځکـــه

دوی داسی عقیده لری‌چه که څوك په روژه‌کی سهواً څه وخوری دغه خواړه خپله دخدای پاك میلمستیاده‌خدای به‌نور هم اجرونه او صوابونه راپه برخه کوی.

**دلنگی شوی پښو پشك وینـه پلاس وهل :**

په پشه یانو کی چه‌دچا په کورکی چه پشو پشك ،لنگه شی نـود کور او همسایه خلك کوشش کوی‌چه‌د پشو دلنگون ورستنی وینـه پلاس وهی اوبیا هغه په یوه تیکه‌کی اچوی اودغلی دانی خواته ئـی ایږدی تر څوغله کی برکت اوهمدارنگه ورته مضر حشرات نشی‌نژدی کیـــدای .

**دپښو خاوری ساتل :**

دکلی او بانډو خلك چه کـوم‌خواته سفر کوی نوددوی دکورنی خلك ددوی دپښو خاوری راټو لوی‌اوپه یوپاك ځای‌کی ساتی دوی‌عقیده لری چه که‌د مسافر دتلو په وخت‌کی دقدمو خاوری واخستل شـــی اوپه یوپاك ځای کی وساتل شــی‌مسافر به‌د تکلیفه څخه په امـان او همدا رنگه دده دسفر موده بـه لنډه شی.

**هغه څاروی چه ډیرآوازباسی :**

داچه پشه یان زیات مالداران‌دی‌اود ژوند زیات ضرور یتونه ئـی په مالداری ترسره کوی نود مالداری لپاره هم ځینی ځینی عقیده‌لری، مثلاً که‌دچا په‌رمه کی کوم څـاروی‌ډیر ناری ووهی نو سمدستی‌دهمدی څاروی دښکرونو دمنځ وینښتان راباسی اود څاروی په‌خوله کی‌اچوی اوپدی ترتیب دڅاروی آواز پـــدی‌طریقه بندوی.

**دماشوم دمریضی نه جوړ یدل:**

کله کله داسی پښیږی چه په‌ځینو وختونوکی ځینی ماشومان‌زیات مریض کیږی‌اوهیڅ تداوی نه‌کیږی‌نوپه کلیو اوبانډو کی ددی رنـځ دعلاج لپاره دسری غوا تازه خوشا یان او ورسره لږ وربشی یو ځـای کوی اوهغه سره بیاپه تـــرازوماشوم تول او وزن کوی اوبیائـــی

په دیوال کې تپې کوي که پدې خوشا یانوا کې وربشې شنه شول دوی عقیده لري چه ماشوم صحت کیږي او که شنه نشي نوزیات اندیښمن کیږي وائي چه ماشوم نه جوړ یږي.

**حامله داره ښځه :**

په کلي او ولس کې که څوکمړشي نودوی داسې عقیده لري چه که ښځه حاملداره‌وي اودمړي کورته ورشي ددې لپاره چه دهور په گیډه کې ماشوم ته زیان‌ونه‌رسیږي‌اود مړي سیوري پرې ونه اویږي دمړي دکفن تار راباسي او حاملداره‌ښځه دخپلو پښو غټې گوتې پرې تړي نوپدې عقیده په گیډه کې ماشوم زیان او سیوري څخه نجات مومي .

**پنځه میاشتني ماشوم :**

کله کله داسې کیږي چه د ځینوپه کورونو کې ماشوم تولد کیږي او پنځو میاشتو نه مخکې دځینې‌تاثیراتو له‌مخې مړي نوددې دعلاج لپاره دداسې رواني او عقیدې له‌مخې‌کار اخلي چه د ماشوم ددفن کولو وروسته دهغه په بستر کې‌ورآدڅاروي تخم‌دان چه د څاروي‌په گیډه کې‌وي دحلالولو وروسته ئې‌راباسي او پشه یان ورته (شیلا نیك) وائي ایږدي او همدا رنگه دتیگو څخه جوړ شوي لوښې چه پشه یان‌ورته (پنزلاپ) وائي اوپه کورکې دځینو شیانو دمیده کولو لپاره پکار یږي ایږدي ترڅو نورماشومان پدې سن اوسال مړه‌نشي.

**دماشوم دخولې څخه اوبه وتل:**

په کلیو اوبانډو کې که دچاپه کورکې دماشوم دخولې څخه دځینو تاثیراتو له کبله اوبه وزي‌نودوی داسې عقیده لري‌چه ددې رنځ دعلاج لپاره باید په کلي کې‌داوو دروازوځنځیرونه‌دی وخوزوي پدې عقیده وي او رواني درمل‌رنځور ښه کیږي.

### دنوی آبادی ړنګیدل :

ډیر وخت داسی پیښیږی چــه دځینو عواملو له کبله دنوی آبادی دیوالونه دجوړیدو وروسته زر زربیرته خرابیږی نوددی خرابیدو او نړئیدو ودمخ نیوی‌لپاره دوی داسی‌عقیده لری چه حتمی آبادی باندی نظر ولیدلی دی ددی نظر ماتی‌لپاره بیاد تهداب په شروع کی لانــدی ورته سپین زر یاسره زر په معلوم‌اندازه دتهداب په بیخ کی ایږدی‌او پدی طریقه ئی دخرابیدو اوړنګیدومخه نیسی .

### سپی خوړل :

کله کله ځینی انسانان دسپی‌دچچلو پواسطه زخمی یاتبی کیږی نود عقیدی له مخی داسی کوی چه دسپی دکور خاوند څخه ډوډی مرچ راغواړی هغه په اورکی څیروی اوپه‌زخم باندی ایږدی پدی ترتیـب مریض ته صحت پیدا کیږی.

### دماشومانو پیدا یا زیږیدل :

په کلی اوولس کی که دچا په کورکی ماشوم تولد شی نوهغـــه وخته چه څلویښت ورځی نوی پوره‌اوپه همسایه ګانوکی بل ماشــوم تولد شی دوی کوشش کوی چه یواوبل سره ونګوری او آواز هم پری ونه لګیږی دعقیدی‌له مخی دواړ ه‌میندی غلبیل را اخلی اوخپلو مخو- ته ئی نیسی اوپه غلبیل کی یو بــل‌سره ګوری اویو په بل باندی آواز کوی اوپه‌دی عقیده ماشومان دبــدآواز څخه ساتی او همدا رنګه دما شومانو دسر خولی ګانی اود رانجو کڅوړی سره بدلوی.

### په یوه لاره دماشوم نه وړل :

په کلیو او باندو کی که دچــاپه کورکی ماشوم تولد شی ترهغه وخته پوری چه ماشوم دوه‌کلــن‌شوی نوی نودوی دځینو ضروریتو نوله مخی که چیری ځی نو بیرته په هغه لاره چه تللی‌وی نه راځی دوی عقیده لری چه کچیرته پــــه هغه لاره چه تللی وی راشی حتمی به په ماشوم سیوری ولیږی .

**دماشوم ژړل :**

په کلیو او باندو کی که دهرچاپه کورکی ماشوم زیات وژاړی نو پدی صورت کی وائی چه په ماشوم سوری یابد غږ پریوتی نو ددی لپاره داسی عقیده لری چه د کورمشره ښځه یامشر نارینه سهار وختی راپاځی اوهیڅ خبری نه کوی دکلی کوڅو ته ورځی اوپه کوڅه کی توره تیږه پیدا کوی هغه دپښوپه گو توتینگه نیسی او تر کوره پوری په پښه کی تینگه راوړی او بیا دغه تیږه دری برخی کوی او هری تیږی ته بیل بیل اور ورکوی اود ماشوم دسرهٔ ئی تاووی او دری خوا ته ئی گذاروی او داسی پـه پښه ئی ژبه وائی (گور انسس او جنسس ونتی).

یعنی واخله دانس اوجنس برخه دوی عقیده لری چه پدی توته په ماشوم ښه اوونه ژاړی .

**دماشوم دپوزی بندیدل :**

که دچا په کورکی نوی ماشوم پیدا شی نود ماشوم مور باید اوه ورځی چرگانو ته کشی اوپیشو، پشك ته پشی ونه وائی پدی چه کچیرته دغه عمل تکرار کوی نوتر پنځـومیاشتو پوری به د ماشوم پـوزه بندش پیدا کړی نوددی بندش لپاره داسی عقیده لرئ چه باید دماشوم پلار سمدستی ولاړشی اود ژرنـدی لاندنی برخه چه پشه یان ورتـه (سونسی) وائی دهغه څخه دغنوجالی اونور بوتی اوگیا پاکوی پدی روانی عقیده دماشوم درمل کیږی .

**په سترگو کی دغوټنی دانـی پیدا کیدل :**

که د ځینی تاثیراتو له کبله دچاپه سترگو بانه باندی دانه وخیژی نوددی دانی دجوړیدو لپاره داسـی عقیده لری چه مریض باید یوستن په تارکی داوچولی تندی لپاسه په خولی کی ځوړندوی او هـر چا چـه ددی ستنی د ځوړندیدو وتپوس وکړ نودستی هغی ته ورکوی اوکنه تر هغه چه دانه نوی وچه شوی پـه تندی ستن ځوړنده وی.

**وئیلوت لړمی :**

که دچا په بدن لړمی وخیژی نوپه کلیو او باندو کی دوی داسی عقیده لری چه ددی دانو دپیدا کیدوسره‌سم دجولا دکور رسی چه پشه یان ئی د(شونتیاك)په نوم یاد وی‌اود بزو دوژغنو څخه دبارونوړلو او راوړلو لپاره پکاریږی راوړی اودمریض په بدن‌ئی گرځوی اوپدی روانی عقیده ددانو درمل کوی.

**داړی اوغوټو پیدا کیدل :**

د ځنی تاثیراتو له کبله کلیواوباندو کی دځینو کسانو پـــــه سپفږو اوتخر گونو کی اډی یاغوټی‌پیدا کیږی نود داسی تکلیف دعلاج لپاره دداسی عقیدوی درمل څخــه کار اخلی چه په کلی او ولس کــی نائی سلمانی (بنو) را اخلی او دمریض په غوټو یااډیو باندی وهــی اوپدی ترتیب درمل‌ئی کوی.

**هغه ونه چه میوه نکوی :**

په ځینو وختونو کی کله کلــه داسی پیښیږی چه ځینی ونی پانی رژوی یامیوه لرونکی ونی میوه نه نیسی نوددی دنظر ماتی لپاره توره ټوټه پیدا کوی اوهغه دځاروپوپه وینوکی لمدوی اوبیائی په ونه کــی ځوړندوی اوپدی ډول‌ئی نظر ماتوی‌او همدا رنګه په وینوکی لمــده شوی ټوټی څخه څه اندازه رااخلی‌اودونی په بیخ کی ښخوی.

**دشاتو مچی :**

داچه پشه ئی ورونـــه زیات‌په غرونو او ځنګل لرونکو منطقـــو اوسیمو کی ژوند کوی نو پـــدی لحاظ دطبیعی زیاتـــو پیداوارو او نعمتونو څخه برخور داردی اودشاتومچیو دساتلو څخه پـــه زیاتـــه پیمانه استفاده کوی‌چه مختلف‌کندوګان‌ئی دکور په دیوالونو کی ورته اینبودل شوی دی چه پشه یان دغه کندوګان دبنمان په نوم یادوی او پدی کی دشاتو مچی په خپل وخت‌کی راپیدا کیږی اوشات پکی برابر وی نو کله که دغه دشاتو مچـــی‌که یشی نو ددوی دبیا زیاتوالـــی

لپاره عقیده لری چه باید تورکار غه زاغ ورته حلالوی اوبیا ئی د (بنمان) په سر ځوړندوی او همدا رنګه توره تو‌ته دکارغه زاغ په خواکی دنظرماتی لپاره ځوړندوی ترڅو نظرئی مات اود شاتو مچی ورته بیا راشی .

## دښځی په لنګون کی :

په کلیو و باندو کی هغه میندی‌چه په ګیډه‌کی اولادوی او وخت‌ئی پوره شی او تکلیف دولادت ورته پیدا او اولادنه‌زیږوی نودوی‌ته د مار پوستکی ورته لوګی کوی اوهمدارنګه دمیږه دلاس اوپښو غټی ګوتی ورته تړی اوپدی روانـــــی‌عقیده درمل کوی.

## دماشوم په‌خوله‌کی مرض :

په کلیو او ولسونو کی کلـه کله دچاپه کور کی ځینو ماشومانو ته په‌خوله‌کی مرض پیدا کیږی اودخولی ښخه ئی اوبه وزی اود خولی داخلی برخه سپین رنګ اختیاروی‌ددی رنځ درمل لپاره دمیراث سړی یعنی هغه څوك چه‌اولاد نه‌لری دهغه دپتی ښخه لوته راوړی اودماـ شوم په خوله کی‌ئی وهی اوپد ی‌عقیده ماشوم تداوی کری.

## سردردی درمل :

کله کله دځینو تاثیراتو لـــه کبله انسانانو ته که دچا سردسهار لخوا درد وکړی نودلمر ختوپه‌وخت‌کی‌دلمر خواته ودریږی اوپه لاس کی داوبو لوښی چه اوبه پکی وی‌نیسی کله چه‌لمر وړانګی پــــه والګیدل نود لوښی ښخه دری ځلـی‌اوبه دلمر خواته ګزاروی او دغـه فولکلوری ښلور جملی دری وا ره‌وائی او اوبه پاشی سورو یجچـم سوریس ایه ویجیچم ،سوریس تاتینا ویجیکم سوریس باپی ویجیکم) نو بیائی پدی طریقه درمل کوی. اوکه‌دچا سرد مازدیګر لخوا درد کوی نویو غلبیل رااخلی اود ماز دیګـر لمرپریوتو نووخت کی‌لمرته مخامخ دریـــــږی .

اودلاس په اورغوی کی ایـره‌اچوی اودلمـر پریتو سره ئی لمر

خواته پداسی حالت چه غلبیل ئی‌په سر کی ایښیوی دوړوی دغه عمل اوه ځلی تکرارږی اوبورته فولکلوری جملی هم‌په هروار کی یو ځـل تکراروی اوپدی روانی عقیده درمل‌کـــــوی.

**کارغه ناری وهل :**

که د چادکور خواته نژدی کارغه ،زاغ آواز وکړی نودکور خاوند ورته خوشالی‌کوی اوداسی‌دده آواز بدرگه کوی شادی خورا یعنی آواز دمبارك شه که‌پدی کورکی څـوك‌مسافروی هغه به‌له سفره راشـی او همدا رنگه دده آواز دنعمت دراوړلو لپاره هم تعبیر کوی.

**دسپږمی تورئیدل :**

دطبیعی پیښنو له‌کبله چه کله‌سپوږمی توروالی پیدا کوی نو په کلیوکی داسی عقیده لری چه‌دقر ضدارانو دقرض دنه ادا کولو پـه صورت کی‌توره شوی نوددی لپاره‌داسی عقیده لری چه باید په کلی کی‌کلال اونکریزی دواړه پـه خپلو منځو کی غله‌جات، حبوبات دلرگیو څخه جوړ شوو پیمانه تبادله کوی‌او همدا رنگه هغه ښځی چه حا ــ ملداروی ،هغه نه تیغ پلاس اخلی‌اونه کوم شی ته غوټه اچوی نه له ځایه حرکت کوی. ځکه که پورتـه ذکر شوو څخه تکرار کړی اولادته زیان رسیږی .

**دماشومان دڅی یا استفراق‌عقیده‌وی درمل :**

په کلیو او بانډوکی که کومه‌حامله‌داره ښځه لنگه شـی د اولاد دزیږیدو وروسته بیاهغه مواد چه‌دوینی سره یو ځای خارجیږی اوـ پشه یان دی مواد وته (کاش)وائی‌هغه رااخلی اوپه پاکه تیکه ئـی کی‌تاووی اوسم‌ئی ښخوی دوی‌عقیده‌لری چه‌که پاکه تیکه اوسم ښـخ نشی حتمی ده‌چه ماشوم ته به قی‌پیدا شی.

**دماشوم په بدن کی دوړو دانودرمل :**

کله کله داسی کیږی چه‌هغه‌ماشومان چه عمرئی ترلسو میاشتو پوری وی نو ځینو وختونو کی پـری‌وړی دانی خیژی دد ی‌دانو درمـــل

لپاره دداسی عقدوی درمل کوی چه په کلی کی داسی سړی چه خون ئی کړیوی یعنی داچه دځینو بدیو له کبله ئی انسان وژلی وی هغه را- غواړی اودهغه پواسطه چه په یولاس کی سپینه تیکه او بل لاس کی داسپنی ټخه جوړ شوی شی چه پشه یان ورته پیڼ وائی را اخلی او دواړه سره په زوره وهی دهغی ټخه داور بڅرکی وزی اودغه داور بڅرکی په ماشوم باندی اچوی اوپدی عقیدوی درمل ماشومان درمل کوی.

**دشارو ګانو جنګ :**

په کلیو او بانډوکی که دچادکورو خواته شارو ګان مینا چه پشه یان دغه الوتو نکی مرغه ته شاووخ وائی په خپل منځ کی سره جنګ وکړی نود کورخاوند داسی عقیده لری چه امکان شته په کورنی کی به جنګ پیدا شی نو ډیر کوشش کوی چه دغه پرندی د جنګ مخنوی اود کوم شی دګوزار په واسطه سره بیل کړی.

**دپښو ښارښی :**

کله کله دځینو کسانو دپښو تلی ښارښی کوی نوپه کلیو او ولسونو کی داسی عقیدی لری چه کورته به میلمه راشی.

**دلاس دورغوی ښارښی :**

که دچا دلاس ورغوی ښارښی وکړی نوهغه ځای چه ښارښی کوی هغه ګروی اودښارښی ځای مچه وی دوی عقیده لری چه پیسی یا بل کوم نعمت به ورته په برخه شی.

**دپوړنی پسکی اوچولی ته :**

په کلیوکی که کوم وخت دکومی ښځی دپوړنی پسکی اوچولی ته راشی نوددوی په عقیده وائی چه حتمی به میلمه راشی او همدارنګه په کورکی وړوکی ماشوم لاس او پښی په ځمکه اوبیا دپښو په منځ کی شاته وګوری بیاهم عقیده لری چه میلمه به ئی راشی .

# دمالداری اهمیت په پښه یانو کی

که مونږ دپښه ئی یاپښیاورور ملیت جغرافیی موقعیت ته په دقت ځیرشو دابه راته ښرگنده‌شی چه زیاتر اوسیدونکی پــــر غرینواو ځنگلړونکو درو‌کی دوېری‌زمانی یعنی دمیلاد ښخه دمخه پــه هغو وختونو کی چه آریائــــی لس‌قومونو دهغه وخت اوزمان دشرایطو له‌کبله یوخوا اوبل خوا کوچونــه اولیږدونی پیل کړیدی نو هماغــه وخت ښخه راهیسی بیاتر ننه پوری‌پښه‌ئی ورونږودخپلی جانداری لپاره زیات دمالداری ښخه کار اخیستــی‌اود ژوند ټول ضروریتو نه‌ئی پــه مالداری پوره کړی چه دپوستکــواو وړیو ښخه‌ئی داغوستلو لباسونه شدو اوغوښو ښخه‌ئی په مختلفــوطریقو خوراکی مواد ترلاسه کړیدی ددی لپاره چه وکولای شم په پښه یانو کی دمالداری داهمیت اوکتــو په باب ښه‌ولیکم اوگران لوستونکی‌پری خبر کړم.

**الف :دوړیو ښخه ئی**

داچه عموماًدپښه یانو مالداری،غویان ،بزی اوگډی دی چه دبزواو گډو وړی چه دهریو ښخه جلا جــلا ښاسونه جوړوی چه هریوئی پــه لاندی ډول دی.

دگډو دوړیو ښخه لمړی کلــه‌چه دثور میاشت په ختمیدو شی نو مالداران خپل گډی په ځړونو نکی‌مینځی اود منځلو ښخه یوه‌وورځ‌وروــ سته‌ئی وړی په بتیگانو ،قیچــــی‌باندی سکنی اولمر ته‌ئی اچـــوی دوه‌ورځی وروسته‌ورته‌شنی ځنگلی‌لبنتی چه پښه‌یان ورته گوئیـــك وائی وړی پری وهی ترڅو هغه گرداوخاشاك چه‌په وړیوکی موجود وی له‌منځه لاړشی بیائی راټو لوی اوپه‌کلی ولسونو کی معلومو ندافانو ته ورکوی چه‌دهغه لخوا دمالوچوپه ځیر تکول اووهل کیږی ورسته ئی په‌چرخا گانو چه‌دغره ځنگلی‌بږ. تی چــــه پښه‌یان ئی پاړبولی اود

عنابو لرگی چه پشه یان ئی شنگری به نامه یادوی په ونسونو کــی دمعلومو نجارانو پواسطه په ښکلو نقشو چرخاګان جوړیږی دغه وړ ی ریشل کیږی دچرخاګانو په واسطه تار جوړول یوائې اویوائې دښځو په واسطه صورت مومی دتار کولو ورسته ئی په کلی کی معلومو خلکو ته چه د جولا په نوم یادیږی ورکوی چه د مغوی لخوا بیاوز ښځه په وړو اودلرګو ښځه جوړشوی لاسی دستګاه وتیکه جوړول کیږی، چه دتیکو دجوړ ولو وروسته ئی دلباسونو په جوړولوکی ترینه استفاده کوی چه هریو ئی ځانته اوپه جلا خصو صیا تــو جوړول کیږی .

## ۱ـ پولونګ :

دغه داغوستو لبا س چه عموماً ئی رنګ تور اوترړو وړیو ښځــه جوړول کیږی شکل ئی کورتی تــه ورته دی نستونی ئی لنډاوتر ښګلو پوری اوږوالی لری یوائې دری ساده تو تی یوئی شاته اودوه تو تی ئـی لکه دواسکټ په څیر ښی او چپ لوری ته دری واړه توتی سره د ـ وریښمو په تارونو ګنډل اودشالخواورته په وریښمو اوزری تارونــو چه په بازارونو کی دکل باتو پــه نوم یادیږی استعما لوی اونقشــی پکی کوی استر نلری یوائې ښــی طرف ئی لاندی کوی اوچپ لوری ور باندی اولپاسه وراندی کمر بندتړی اوپه اغوستلو کی ور ښځه د کمیس په څیر استفاده کوی .

## ۲ـ ویچ :

دغه لباس معمولاً دسپینو وړیو ښځه دپرتوك په څیر ګنډل کیــږی اونسبت پرتوك ته لنډ او تنګ ګنډل کیږی جوړونکی او ګنډونکی ئی په کلیو کی معلوم طابفی دی چه عموماً دجولا اوپشه وار په نامه یاد یږی دپولونګ لاندی دپرتوك په عــوض اغوستل کیږی چه پدی پرتوك کــی دوړیو ښځه جوړ شوی کمربند اچول کیږی چه دغه کمر بند زیات نرم وی دپنسو په سر کی دکلی پیغلو پواسطه وریښمو مختلف تارونه په استعمال اونومونو ګلان اچوی او همدا رنګه په دواړو پنسو دزنګانه په سر کی

په وریښمو ګلان اچول کیږی یواځی‌شنه اوسره وریښم پکی استعمالوی دغه لباس بیادوئیچ په نوم‌یادوی .

۳- پاپیچ :

داچه پشه ئی ورونه اکثره په‌غروکی ژوند کوی اوزیات ضرور- یتونه ئی دځنګلونو څخه پوره‌کوی‌نود ځنګل اوپه غرو نوکی دګرځیدو لپاره لازم‌داغوستولباسونه جوړوی‌تر څو وجودئی خارجی تصادم څخه په امان‌وی نوپاپیچ هم‌ددوی دضر-وری شیانو له‌جملی څخه شمیر ل کیږی پاپیچ هم‌د ګډو دوړیو دریشلووروسته په‌کلی‌کی دجولا ګانو په واسطه جوړیږی چه دهری پښــــی‌لپاره ځانته یومتر اوږد او تقــریباً یوچارك پراخ اوبدل کیږی اوپه یوسرکی ورته دوریښمو څخه جــوړ شوی‌نیم متراوږد اویو نیم سانتــی‌پراخ کمربند دجوړولو وروسته بند ری چه‌دغه لباس دزنګون لاندی‌چه‌پورته برخه ئی دوئیچ ړنسو اندازه اوپټ وی‌د زنګون تربجلکو یاخنګروپوری په دواړو پښو بیل بیل‌تاووی ترڅو دځنګلی بوټو او نور ضــررڅخه وساتل شی دغه لباس پـــه پشه یانو کی‌پاپیچ‌په نوم یادشویدی.

٤- بوګه کلاه :

یاغوټی لرونکی خولی دغه‌خولی‌هم‌د ګډو دوړیو څخه دتار کولـــو وروسته پلاس جوړول کیږی چـه‌جوړ نکی اکثره ښځی دی شکل‌ئـــی پیکداردی خولی ته ورته دی‌اوپه‌سرنی برخه‌کی یود غوټی په څیر جوړوی دغه‌خولی عموماً په‌ولس‌کی‌سپین ږیری خلك په‌سرکوی دغــه خولی دبوګه کلاه په نوم یادوی .

٥- شانځړئیك کلا :

دغه خولی ګانی‌هم دګډودوړیوڅخه‌چه ناریننه ئی په پرکانیك نومی چه‌د لرګو څخه ساده جوړ شـــوی‌لاسی صناعتی لوښی دی اوپه کلی کی دنجارانو لخوا جوړیږی تارونه‌جوړوی دخولی جوړولو کی پـــوری جوړوی دخولی داندازی دتارونــــودبرابرولو وروسته‌په کلی اوولس

کی تول ځوانان اوسپین ږیری د. سی خولیوپه جوړولو کی پوره‌مها-
رت لری اوځان ته دوانشر یك یاشانځړئیك کلاچه ځونډی لرونکی
خولی په نوم یادوی جوړوی دغه خولی گانی عموماً ځوانان په سرکوی
اود ویځچ ،پولنگ پاپیچ، سوخولی، پښیلا سره‌یو ځای داخولی په سر
کوی اوپدوی کی فرهنگی لباس په‌ښیرپاتی دی رنگ ئی سپین اوپه
ځوندی باندی سره اوشنه وریښم دښکلا په خاطر استعما لوی.

٦- شړی :

شړی چه پشه یان ورته شاړی‌وائی داهم دگډو وړیو ښخه جوړول
کیږی کله چه دوړیو ښخه تارونه جوړ شول نوپه کلی کی جولا گانو
ته دتیکو دجوړولو لپاره ورکول کیږی دتیکو دجوړولو وروسته په
په معلومه اندازه شړی گانی‌جوړول کیږی بیا ورته ښه اوپه جوشوی
اوشړی دوه‌غبرگه کوی اوپه معلوموځایوکی حاواروی لپاسه وربا ندی
دغه گرمی اوبه اچوی اوددوه نفرولخوامینځل کیږی‌ترهغه وخته ور-
باندی اوبه او منځل کیږی تر څوشړی پت پیداکړی دپټ‌پیدا کیدو
وروسته ئی رااخلی‌اودواړو خواته ئی‌په‌معلومه اندازه تارونه را باسی
او ورباندی وریښم استعما لوی‌اوپه اغو ستولوکی ترینه استفاده
کوی دغه شړی گانی یواځی دسپین‌ږیرو او همدا رنگه دبړستنی په
عوض هم تری کار اخستل کیږی.

٧- گلو بند :

دغه ضروری لباس هم دگډو
وړیو ښخه جوړول کیږی امړی وړی تارونه کوی دتار کولو ورسته په
کلی او ولس کی معلومو ښځو تـه ورکول کیږی چه جوړونکی ځانته
معلومی ښځی‌اوپه جوړولو کی خاص‌مهارت لری چه د لرگی ستنو پوا-
سطه یوستوی ئی په‌دوه ستنو اودوه ستوی‌ئی په څلور وستنو چه
دغه ستنی دغره ځنگلی بوتی چه‌پشه یان ورته (کئی) وائی جوړول
کیږی اود گلوبند ونو په جوړولوکی ترینه کار اخلی دغه دضرورت

وړلباس په يخو او سړو ورځو کې ترخپلې غاړې اوغوړونو تاووی تر څو دیخنی مخه وینول شي دنـــوروړین لباس سره چه پورته مویاد کړی یو ځای په اغوستلو کی ترینه استفاده کوی رنګ ئې عموماً سپین اوپه کلی او ولس کی دپیغلو لاسی صناعت دی چه د جوړیدو وسیله ئی هم دلرګو څخه جوړ شوی ستنی دی.

**نبت :**

په پښتو ژبه کی ورتـه لمسی وائی چه د کور زیات ضروری شی په نوم یاد شویدی داهم دګــــډودوړیو څخه په کلی او ولس کـی دمعلومو خلکو او طایفو لخوا چـه پشه وارو په نـوم یادیږی جوړوی دجوړیدو لپاره ئی لمړی دلرګو اوږدی اوپراخی دروازو په څیر دلمسی تر اندازی لږ لږ حاواروی او پــه خواکی ورته داور په سر تیارخوشی پـوری تختی چـه پخوا نـه ورته جـوړ شو یـوی وړی ور بانـدی اوبه پاشی او نور وړی پری ایږدی دنبت په اندازه چه پوره شونو په خپل او فربنګی مهارت ئی مړی اووربانډی جوشی اوبه پاشی بیاور بانډی دغرو په ځنګلی بوټو شنه اوسره رنګ شوی وړیو باندی پری ګلان اونقش ښکل کوی اوپه کورونوکی دناستی اوملا ستی دتوشکونو په عوض ترینه کاراخلی پشه یان دغه دضرورت وړشی دنبت په نوم یاد وی .

**پکول :**

پکول جوړول په پشه ئی ورونوکی زیات شهرت لری او یواځـــی ځوانان ئی په سر کوی دګډو دوړیو څخه چه عموماً پکولو نه سپین رنګ لری دتارکولو وروسته دنورو لباسونو دتارونو څخه نسبت کم اونری دچرخا ګانو پواسطه په کلیوکی ، پوهو او سابقه لرونکی ښځو لخوا ریشل کیږی او بیائی په ولسو نوکی دجولا ګانو په نامه خلکو اوطا- یفوته ورکوی چه دهغو لخـــوا د(دوکان) په نوم ددرمو اود غـــره ځنګلی بوټی دشنو وړو لښتو څخه جوړ شوی دستګاه دغه دپکولو نـــو تیکه جوړوی بیائی په کلیو کـــی په معلومو ښځو لخوا برش اودپکول

خولی ګانی ګنډل کیږی دننګر هار ولایت مربوط ددرنور دویګل دسیمی پشه یان دپکول په جوړولو کی زیات شهرت لری.

**دبزو وژغنی :**

په پشه یانو کی دبزو وړیو ته پاړئیک ژول وائی دغه وړی یو ائحی دپښو لپاره جرابی چه په پشه یانو کی دپنبیلا په نوم یادوی او همدارنګه دبارو نور سیګانی چه په پشه ئی ژبه ئی شونتیک بولی او دکتو نوجوړولو تاړونه دناستی دکتکیو لپاره چه په پشه یانوکی ئی ایتک بولی جوړوی چه هر یوئی په لاندی ډول دی.

**پنبیلا :**

دکال دشروع څخه دری میاشتی وروسته مالداران خپل وزی په قیچیګانو سکنی بیائی لمر ته اچوی دری ورځی د لمر اچولو وروسته ئی بیا ئی په تیکو یاد لرګو په تختونی دغره ځنګلی بوټی په شنو انبتوئی وهی تر څو ګرد، خس او خاشاك ئی له منځه لاړشی دتار کولو طریقه ـ ئی ساده اود ځنګلی بوټی چه په پښتو کی ورته خون ،زیتون وائی او پشه یان ئی (کی) بولی دهغو دشنو لښتو څخه په نجارانو جوړشوی چه په پشه ئی ژبه ورته کاړی وائی داسی تار کوی چه لمړی وژغنی کولولی په ځیر جوړوی اوهغه په اپتیك نومی وړو چوکی ګانو باندی ایږدی او لپاسه ورته تیګه ایږدی همسایه ځوانان شاو خواته هریو په خپل نوبت دغه وژغنی چه لارو په شاو خواکی ناست وی تار کوی دتار کولو وروسته دکورهریو نارینه دپنبیلا په جوړولو کی بلدی لری اوهر یوئی ځانته ګنډلای او جوړوالای شی شکل ئی جرابو ته ورته چه لمړی داپه پښه کوی او لپاسه ورته دحیواناتو دپوستکو څخه جوړ شوی لباس دسوخو لی په نوم په خپلو پښوکی اچوی اوپه غرونوکی خپل پښی دخارجی حوادثو څخه ساتی دنارینو اوښځو فرهنګی لباس دی اوتر اوسه پوری ئی په خپلو پښو کوی.

زیاتره په هغو وختوکی چــه دخپلو ښارویو لپاره مخصوصاً په ژمی موسم‌کی دغره ښخه مختلف بــوټی‌په‌خپلو شاگانو راوړی نودغه پنبیلا او سوخولی په پښو کوی ترڅو په واوروکی دیخنی دمقاومت‌او خوځیدو ښخه په امن وی.

**شونتیك :**

شونتیك په پښه ئی ولس کی‌دهرچا په کورکی ضروری لــوښی په څیر گڼل کیږی پښه ئی وروڼه‌زیات خپل بارونه په خپلــو اوږو لکه دغره ښخه لرگو ،چراغ چــوپ‌یا شونتی دراوړلو دښارویو لپــاره ځنگلی وابڼه اوبوټو او همدا رنگه ژرندوته دگوډو دوړلو اونورو بارو نو دوړلو لپاره دشونتیك ښخـــــه استفاده کوی دغره ښخـــــه مختلف بوټی دوینځا په‌نوم پښا کوی اوپه‌آسانی سره‌ئی کورونو ته رســوی لمړی وژغنی تار کیږی او بیـــــادکشنگا په‌نوم چه دخون دکلك لرــ گی ښخه جوړ شوی وی پـــه دری‌د دریـــو کسانـــو لخوا پــه ډیر زور اوقوت جوړیږی ترڅو ښه کلك‌اوژر خراب نشی اوږدوالی ئی‌څلور متره دی‌دسرپه یوه برخه کی‌ورته دکاړی په‌نوم چه دکلی نجارانو لخوا جوړیږی کلکوی تر څــو دگیډو اوگوډو بارونو په‌تړلو کی ور ښخــه گټه واخلی دغه ضروری شی پــه پښه یانو کی دشونتیك په‌نوم یــاد شویدی اودهرچاپه‌کورکی موجودوی‌دضرورت په وخت‌کی یوبل ته هــم ورکول کیږی .

**ایتیك :**

دغره ځنگلی بوټی چه‌پارئـــی‌بولی دهغه دلرگو ښخه جوړ شوی چوکی گانی چه څلور بازو اوڅلورپښی لری ساختمان‌ئی چپرکت ورته دی دنجارانو په واسطه چه پښی‌ئی‌په ښکلو نقشو ښکلی کوی جوړیږی دغه لرگی نسبت نورو لرگیو تــه کلك او زرنه ماتیږی دغــــه واړه کټگی بیا پدی وژغنو اوبدل‌کیږی .

اوهمدا رنگه دکټونو په‌ابدلوکی دهمدی‌وژغنو ښخه‌کار اخلی چه

دکتونو وژغنی نسبت نوروته پنډاونرم ابدل کیږی .

**ب- دپوستکو ښځه :**

دښارویو دپوستکو ښځه هـــمدژوند ضروری شیان لکه :

بنوړا :دغه دکور ضروری شیچه غله دانه پکی ژرندی ته داوړه کولو په خاطر وړی دغه لوښی په پشه یانو کی دبنوړا په نوم یادیږی چه په کلی عموماً دپشه وارو لخواداسی جوړیږی چه کله ښاروی لکه وزی هلال شی نو پوستکی ئیزرچپه کوی اوپه لاندنی یعنی دغوښـــی په طرف باندی دجوارو اوړه پاشی اوبیرته ئی سموی او دوژغنو طرف ئی بیرون کوی اوکلوله ئی دکورپه کونج سیوری کی دری یاپنځـــه ورځی ایږدی بیائی دغه وخت لپاره لمرته ایږدی اودستی ئی وژغنـــی باسی کله چه وژغنی خلاص شـــی نودغو اوپه غوړ یوئی ښه چــربوی اوبیائی لس ورځی دسهار نـــه تر بیگا پوری په خپل لاسومگی تر څو ښه نرم اوآش واخلی بیائی پرسوی او وستل یاپراخو بامونو ته چـــه ماشومان پکی لوبی کوی کوډی ورته ورکوی هغوی پری خپل فرهنگی لوبی کوی اوکله چه پکی هاواکمه شوه نو بیائی رااخلی اوپه وازدوئی مالش ورکوی دگندونکی دجوړ ولواجوره معلومه غله دانه دهچه دهر کوډی اندازه په پیمانه چه پشه یانئی کاسا اوغله دانه بری معلوموی ورکوی دغه دکور ضروری شـــیدبنوړا په نوم یادیږی اود ضرورت په وخت کییو بل ته ورکول کیږی.

**گړئیك :**

دښارویو دپوستکو ښځه جـــوړشوی لباس دی چه ددری بزو پو- ستکو ښځه داسی جوړیږی چه کله په اخترونو کی دقربانی لپاره ښار وی حلال کړی نودهغو پوستکو ښځه ئیچه دهر چا ورته ضرورت وی نو دهمسایه گانو لخوا ورته ورکـــول کیږی نو سمدستی ئی دلیته پوس په نوم پکی دجوارو اوړه اچـــوی اوتاو کړی ئی په سیوری ځای کی پنځه یاشپږ ورځی ایږدی اوبیا ئیرااخلی اوپه وازدو باندی ئی هریو

بیل غوړوی اوپه لاسونو کی ئـــیمکی دبنه آش دورکولو او مړلـو وروسته ئیپه کلیکی پشه واروته ورکویچه دهغولخوادچینیپه شیرچه یو پوستئی شاته اودوه نورئـــیښی او چپ لوری ته ګنډی نستونی نلری اوږدوالی ئی تر ځنګنو پوریوی وړیئی بهر لوری ته اغوستـل کیږی کله چه دغرونو ښخه دځاروشاخچی او همدا رنګـه ګیاوی او آزوقه لکه پاړ، سولنچ، ماڼدونو،شاخچی او همدا رنګه ګیـاوی او وابنه دسوخت لرګی وښا په نـومدغره ښخه پهخپلو شاګانو راوړ ی نوګړئیك اغوندی تر څو ملائی زخمینشی دیر پوست اودهر بار دوړلو لپاره ضروری لباس پهحیث ترینه ګټه اخستل کیږی دغـه لباس او ضروری شی دهرچا په کورکـــــیموجود اود ضرورت په وختئی یو اوبل ته هم ورکول کیږی.

**دپ :**

موسیقی اوهنر دلرغونی زمانیراهیسی تراوسه پوری دخپل غنـــی فرهنګ لهمخی بیاان تراوسه پوریپه ولسونو کی ژوندی پاتی دی او دولسونو دساعت تیری او خوشالیباعث ګرځیدلی دی اود خپل هنـــر دغږولو په خاطرئی دمختلفو مـو سیقی آلاتو ښخه ئی استفاده کړیده زمونږ دپشه ئی ورونو عمومی. مو سیقی آلات ډول، چمبـــه ، سرنا، شپلی او غیجك دی رباب هم پکـیغږول شویاوپه ولسکی ځانته بیل بیل کورنی او طایفی موجود وی .

دپهم په کلی او ولس دګډودپوستکو ښخه جوړیږی چه جوړو-نکی همپه کلی او ولس کی محلـــیهنرمندان دیلمړی کله چه پوستکی دحلال شوی ګډی ښخه وباسی نـودغره ځنګلی بوټی چه پاړئی بولـــی دغه پوست په مهارت وربا نـدیخیژوی څو ســوری نشـــی بیائـــی دکور پهسرکی لمرته ښه وچـویاوتریو کاله پوری همساتل کیږیهر څومره چه زیات وساتل شی دچمبیاوازئی ښکلی راځی اول ورته دچار مغزو لرګی ښخه ئی ګرد جوړوی اوپه یوه برخه کیور باندی دغه پوست چه مکمل دجوړیدو دمخه یومیاشتپه خپلو لاسونو چه دغویانو غوړی

پری وهی اوپه خپلو لاسونو کــــی بنه مړی اوبیائی په گرد جوړ شوی لرګی خیژوی نودغه ته پښه یان دپ وائی اوپه ودونو اونورو خوښیو کی محلی هنرمندان دسندرو سره یـو ځای دخپل فرهنګی موسیقی له مخی دپ په یو لاس وهی اوسندری ور ـ سره وائی ددپونو سره چه دپنځونه ترلسو هنرمندانو پوری وی سندری ویل کیږی اوډول سره ټول یو ځای بیا دپونه وهی اوسندری وائی.

**الندا :**

دپښنو پیزار چه دپنیلا دپاســه اغوستل کیږی دغه پیزار زیـــات دغویانو دپوستکو څخه په ډیرساده ډول جوړیږی چه هر یوئی ځانته په کورونو کی جوړولای شی یوائـــی دپښنو دلاند نی اوشاو خواپه اندازه په تیره شیانو پوست برابروی اوشاو خواته ئی سوری کوی اوپکـــی دپوست څخه ایستل شوی تارونـــه اچوی او دپنیلا لپاسه په خپلو پښنو کوی او تارونه ئی کلکوی دغــــه پایزار په پښه یانو کی دسوخولـــی په نوم یادوی نارینه اوښځی ئــــی په اغوستلو کی ترینه ګټه اخلـــی اوهر وخت چه غرو نوته دښاروو دازوقی اویا دلرګو دراوړلو لپـاره ورځی نودغه پایزار وپه پښنوکولوکی استفاده کوی.

**پټول :**

پټول هم دپښه ئی ورونو دپښنو کولو فرهنګی لباس دی دښارویـــو خصوصاً دبزو پوستکو څخه داسی جوړیږی چه لمړی پوست لیته پوس چه مخکی موهم ورته اشاره کـړی کوی اود معلومو ورځو ورسته ئی رااخلی اود غواو په غوړیوئی ښه چربوی بیائی یومتر اوږد اویوچارك پراخ په تیرو شیانو غوڅوی دهریوپښنی لپاره بیل بیل جوړوی اودجوړ یدو ورسته ئی یوائی همدا جـوړشوی پوست په خپلو پښنو تاووی او لپاسه ئی دهمدی جوړ شوی پوستیوه طرف ته پکیچه دپوستو بلـه پټی بنده شویوی تاووی او خپلـه پښنه دطبیعی بدو اوسختو حوادثـو لپاره مخنیوی کوی دغه لباس نـوپه پښه ئی ورونو کی دپټول په نوم تراوسه پاتیدی .

**ایتیك او کتیس پوستی :**

کتهونه خوپه افغانا نوکی زیات شهرت او دژوند ضروری شی په حیث گنل کیږی او ائتهیك یادناستی لپاره وړوکی کتګی چه عموماً پشه ئی ورونه په خپل کور، کور مخه اوپه بامونو باندی دناستی لپاره دغره ښیږی اودمر خانینو یا عناب لرګو څخه چه د کلی اوولسو نو، نجارانو په واسطه په ښکلو نقشوجوړ شویوی اودغه کتګی دغوایانو دپوست څخه ورته واړه واړه پټیګانی دهغه غوائی پوستکی څخه چه یواځی دوچیدو وروسته یوکال پری تیر شویوی هغه لس ورځی پوره په کمو اوبه لرونتو ځایوکی دپوستو اووروسته په تیرو شیانو تیری پټی بیلوی اوخپل کتهونه اودغه وړی اوناستی کتګی پری اوبی.

**واشیا :**

دموزی په شکل جوړیږی دغویانو اوګډو دپوستکو څخه چه لاندنی برخه تلی ئی دغویانو دپوستکو اونور ټول ئی دګډو دپوستکو څخه دلیته پوس اوبیا دانارو پوستکی اودانارو بیخو دپوستکو په جوشو اوبوکی ورته آش ورکړ شویوی په ولسوانو کی دمعلومو ګنډو نکو په واسطه جوړول کیږی دګنډلو تارهم پکی دګډو پوستکی استعما لـــوی وریښم هم پکی دګلونو درسمولـولپاره استعمالوی دغه پایزار عموماً مشران اوسپین ږیری په پښو کوی.

**انګړی :**

دخپلو اړو لکه جوار، غنم وربشـودچاښو لولپاره دپوستکو او لرګـــو څخــــه چــه یواځـــی دګـــډو دپوستکو څخه جوړیږی لمړی پوست دویویستلو قخه دری ورځی وروسته رااخلی او دنجارانو لخوا ورته ګرد لرګی جوړوی اودغه پوست پری چه لاندی ورته دغره ځنګلی بوټی چاو له وهی اوپه لرګی ئی تینګ خیژوی اولمرته ئی ایږدی په وچیدو کـــی ټول ویښتان تری خپله نړیږی اوبیا پکی په ستنو سوری کوی دغه دکور ضروری شی دانګړی په نوم یـــاد وی.

**دړ :**

مخکی موهم اشاره وکړه چــه پشه ئی وروڼو کی دهنر دمو سیقی آلات یواځی دړه، سرنی، دپ،غیجك شپیلی او رباب دی چه جوړو نکی هم پخپله همدا هنرمندان دی لمړی دډول لرگی دنجارانو لخوا معمـولاً دغوزانو او توتانو لرگو څخه جـوړیږی او غوزانو دقلیو په واسطه چه ټکول‌شویوی پری لاندی باندی ۲ تر۳ورځو پوری مخل کیږی اووروسته پری دغواو غوړی وهی او غوړ کوی‌دمعلومو اوپوهو هنر مندانو لخـوا ئی بیائی لمرته دایښودلو وروسته پری دغه آش شوی دگډو پـوست خیـــژ وی دډولـــو نـــه یواځی‌ځی دموسیقی په آلاتو سرنـــی او شپیلی کی پوست نه استعما لـوی‌اونور په ټولوکی دگډی پوستکـی پکار یږی.

**چموز :**

چموز هم دغویانو پوستکی څخه دآش ورکولو وروسته دپشیه وارو په واسطه چه لاندی برخی ته ئـی‌دغویانو پوست اوپه سرنی برخه- کی دچپلکو په څیر دگډو پوستکـی‌استعما لیږی‌اوپه خنگرو کی‌کلکیږی وریښم هم‌پکی دډول لپاره استعما-لیږی یواځی دښځینو لباس اوپـه ناوی توب‌کی ئی یواځی معتبـــروکسانو لپاره جوړول اوپه پښو کول کیـــږی .

**ح- دشدو څخه خوراکی مواد :**

دشدو څخه ئی مختلف خورا کی‌مواد لکه‌پنیرونه چه پشه یان‌ورته ختك یا کړالیك .ټوکونا هم وائـی‌جوړوی چه‌هر یوئی په لاندی دول جوړیږی اول دباندو پنیرونه .چه‌په پشه ئی ژبه ورته شالای ختك وائی دپسرلی په موسم کی دکلی

تول مالداران سپین پیری اوځوانان په وستل کی یو ځای کیږی اودخپلو لمړی شدی دغواګانو څخه په دوینیغله ورکول کیږی دغه چوپان یوا-ځی دغوا ګانو لپاره نیول کیږی کله چه څاروی ته ورسول شو نو دهر چاشدی چه زیات وی ورته دچوپان لخوا خبر ورکول کیږی او دشــدو په واسطه ښکلی جوړ شویوی لشیاوبیائی په ختینو لوښو کی جوشوی اوپکی مایعه چه د څاروی په ګیده کی شیلانك په نوم غوښه ده وچوی اوهغه په کدو ګانو کیدمرچ لو بیااومعلوم اندازه اوبو کی خساکــو ی پکی لړ اچوی دځه مودی څخه وروسته شدی جدا او اوبه جدا کیږی اوپکی لاسونه وهی او اوبه دخیدك څخه باسی بیائی رااخلی اود غــره ځنګلی بوتی چه ګوئیك نومیــږی دهغه دشنو او وړو لښتو څخه جوړ شوی کجاوه چه پشه یان ئی لهـــائجچك بولی ایږدی ترڅو هیڅ اوبه پکی پاتی نشی بیائی رااخلــی اودغره بل ځنګلی بوتی چه زمبر نومیږی دهغی شاخچی غو وی او پنیرونــه پری ایږدی دلسو ورځووروسته ئی په کجاووکی کلیوته راوړی اوپــه تیرو شیانوئی هم په منځ کـــی څیری کوی اومیده مالګه پکی اچویاولس ورځی دکاریو لاندی چـــه دځنګلی بوتو څخه جوړ شویوی په ختینو کوناګانو اوتغاروکی ایــږدی چه پدی ورځو کی دپنیرو څخـــه پاتی اوبه دمالګی پواسطه خارجیږی او بیرته ئی جزبوی بیائی را اخلیاوپه ختینو تشو نــو کی چه پــه معلومه اندازه اوبه او مالګه اچولشویوی پنیرونه پکی اچوی دغــه پنیرونو ته شالای ختك یاد باندوپنیر په نوم یادیږی چه د یو کـال څخه تر ۳ کلو پوری ساتلاو خوړل کیږی .

دغه پنیرونه پــــه خیرات اوودونو کی دوډی سره ولسونو ته ورکول کیږی دغه پنیرونه دګـاه ختیك په نوم یادیږی اود بزودپنیرو سره زیات شباهت لری اود بزو دپنیر څخه زیات قیمت لری نرم او زیات غوړ پکی وی اوپه کورونو کیدوډی سوړسك سره دانګولی پـــه څیر خوړل کیږی .

**لړوه ختیك :**

یاروست شوی پنیر دغه ډول پنیرهم دباندو دپنیرونو څخه جوړ یږی دهغه پنیرونو څخه چه لړوه ختیك جوړوی هغه پنیر دمالګی د اچولو ورسته دبل پنیر څخه لس ورځی ورسته نور هم په خمونوکی نه اچوی بیائی هغه خمونو ته چه په ځکه کی ښخ شویوی په هغه کی مالګه ،اوبه ،مرچ اودغره ځنګلـی بوټی چه (پکی) نومیږی دچینجیـو دمخنیوی لپاره اچوی او پنیرونـــه هم پکی اچوی اوسر ورته داسـی بندوی او اخر وی تر څو پکی هیڅ هوا داخله نشی دغه پنیرونه پـه خمونو کی دیوکال څخه تر لسوکالو پوری هم ساتل کیږی او اکثره مالداران په خپله مړینه کی دخیراتونو لپاره په خپل لاسونو پنیرو نـه خمونو ته اچوی اود خیرات نـــوم پری ایږدی پشه یانئی ډوډی،سوړ سك سره دانګویی ،قتغ په ځیـرخوری ،دسینه بغل مریضی لپـاره اکثیر خودل شویدی دوه ډولـــه رنګ اختیاروی چه دپنځو کالوپوری سورنګ اختیاروی خوندیی زیات تنداوزیات لګه دکوچوپه ځیر نرموالی لری دشالای ختك په نسبت زیـات ارزښت لری اوپه کلی ولس کی ډیر ګران میلمنو لپاره ورکول کیـــږی دغه پنیر دلړوه ختیك په نوم یادوی.

**لامای ختیك :**

دکلی پنیرونه دژمی په موسم کی پشه یان خپل څاروی لګه غویان اوبزی یو ځای دخپل استوګنی پـه کوټه کی دیخنی دمخنوی لپاره په (ونتر) نـومـی ځای کـــی ساتی او آزوقه ورته برابروی نود دوی دشدو څخه چه همسایه ګان پـــه نوبت شدی سره د (لاور) په نــوم تبادله کوی اود شدو اندازه پـــه پانجو اولس کـــی دتـــول او وزن پواسطه نه کیږی یواځی دلرګـــو پواسطه چه (کټی)ئی بولی اندازه کوی لمړی شدی په یو لوښی کـــی چه پشه یان ورته (دوینی) وائـــی لشی بیا پکی ډکی کښته کوی په هره اندازه چه شدی ورسیدلی هغه

ځای په تیره‌شی گروی اوپه همدی‌اندازه بیا دوهم نوبت والا اخلی ددی شدو شخه هم پنیرونه جوړوی‌چه دغو پنیرونو ته لامای یادکلی پنیر وائی نسبت باندو پنیرونوته ارزان اوسپین رنگ لری.

**کوتیك :**

کوتیك هم دشدو شخه دپنیراستلو وروسته بیاهغه اوبه چه چه پنیرو شخه پاتی شویدی پـه اورونو باندی ورته جوش ورکوی دښه جوشیدو ورسته دغه اوبـه ټینگوالی پیدا کوی اوهغه په خلتو کی‌چه دخمتا شخه جوړ شـو یوی‌اچوی او خلتی ځوړندوی تر څواوبه تری خارج شی دغه خواړه بیـادکوتیك په نوم یادوی‌رنگ‌ئی سپین او مستوته ورته وی پکی خام پیازتوتی کوی اوناری سره‌ئی دانگولی په حیث ترینه کار اخلی زیات ئی‌په باندو کی جوړول کیږی.

**ائیلا :**

ائیلا هم خوراکی مواد چه دپنیرشخه پاتی شوی اوبه دی دغه خورا کی مواد هغه وخت چه دشدو شخـه پنیرونه ویستل شو نود هغه پاتی اوبه په ختینو منگوکی ساتی او دجوار وسوړسك سره‌ئی خوری لـږ ترئیو خوند لری دغه خوراکی مواددائیلا په نوم یادوی اوناری سـره دانگولی په صفت کاراخلی .

**چکل :**

دکوتیك شخه پاتی شوی اوبوته چکل وائی چه دغو رنگ زیړاو خوږ خوند لری د‌ه‌سره نور ائیلا یوځای کوی اوهغه څاروته چه شدی کم‌وی ورکول کیږی دڅو ورځو پـه چکل ورکولو سره دڅارو ی شـدی زیـاتیـږی .

**دڅارو و دکلمو شخه :**

دڅاروی کلموشخه هم دضرورت‌وړشیان جوړوی په کلیو او ولسو- نوکی دندافانو چه پشه یان ورته ډنډا وائی ورکول کیږی چه دهغـی لخوا ددغو کلمو شخه دندافی‌دستگاه‌جوړوی اوپری مالچ ،وړی او وژغنی

وهل کیږی .او همدا رنګه در باب تارونه هم پری جوړوی چه دجوړیدو طریقه ئی یوائځی په ندافانو پوری اړه لری.

**شیلانیک :**

دڅاروی په ګیده کی دلړمون سره یو ځای میده ئی چه پشه یا ن ورته شیلانیک وائی د څاروی دحلالولو سره سم راباسی او پاك ئی پرمنځی اوپه شاخچوئی ځړوی اولمر ته ئی ایږدی اود ښه وچیدو ورسته ئی نری غاړی کدوکی چه ورته مخکی دهمدی لپاره جوړ شوی وی دمرچ، لوبیا او معلوم مقدار کرمو اوبو او ائیلا سره اچو ی اوپکی شیلانیک خشاکوی دغه دمایا په نوم شدوکی اچوی او پنیرونه پری جوړوی.

**دمالداری طریقه ئی :**

عموماً دغرونو پشه یان یوائځی غویان، وزی او ګډی په نوم څاروی ساتی چه دری واړه ئی دځنګلی څارو په نوم ساتل کیږی ځکه دجنس په لحاظ همزیات توپیر لری په غرونو او ځنګلونو کی په آسانی ګرځیدلی شی دغویانو نسل ئی نسبت نورو هموار منطقو غویانو څخه وړوکی او نری پښی لری همدارنګه وزی نسبت نورو بزوته واړه او تیره خکرونه لری او همدا رنګه ګډی پکی هم دغره ځنګلی آهوته ورته دی.

زیات خلك پکی میراثی دپخوانه رمی لری اود مالدار په نوم پاتی دی اونور خلك پکور کی دیوی څاروی څخه نیولی ترلسو څارویو پوری په کورکی ساتی ترڅو دضرورت وړ خوراکی مواد ترلاسه کړی چه په هر موسم کی په جلا جلا ساتل کیږی په کور او غرونو کی دساتلو لپاره ځایونه لری.

**۱ـ دپسرلی په موسم کی :**

دثور په میاشت دکلی او ولس خلك په یوه اتفاق دکلی مشرانو لخوا په یوه آواز وستلو ته غوښتل کیږی او غرونو باندوته د څارویو وړلو لپاره ورځ چه دغه ورځ په پشه یانو کی دهرکال په شروع کی فرهنګی

بنه‌لری اوخلك پکی خوشالی کوی‌د(چپل) په‌نوم یادیږی انتخا بوی اوپه کلی کی‌دخاروو دساتلو لپاره‌په شریکه چوپان چه پشه‌یان ورته والگار وائی هم انتخا بوی ترڅوپه‌غرونو او باندو کی دخاروو اودخار وو دشدو اندازه او پیمانه هـــرمستخق ته‌په خپل نوبت دشـــدو په اندازه برخه وکړی نوپه هغه‌ورځ چه دغره لوری‌ته حرکت کوی نوبیا دحرکت دوخت دټاکلو لپـاره‌دکلی دکاندیدار لخوا په بام آواز کیږی سهار وختی ټول مالـــداران‌خپل څاروی معلوم ځای‌ته باســـی اوټول‌یو ځای دخاروو سره دچپل‌په‌نوم باندو ته حرکت کوی اود خپل څاروو سره دکور ښځی او ماشومان‌هم ترمعین اندازی پوری ورســـره ورځی اوپه باندوکی دهـــر څارووشدی چه دیروی دچوپان لخـــوا خاوند غوښتل کیږی اود شدو څخه ئی پنیرونه ،کوتیك اوائیلا جوړوی شدی عموماً دنارینو لخوا په‌دوینی‌گانوکی چه‌د لرگو څخه دمعلو مـو نجارانو لخوا جوړیږی لشل کیـږی‌چـوپـان غـرو نـو کـی خپلـــه پــه ډبــر ینو تیکو سوړ سك‌پخوی یـواځـی دجـوارو اوړو څخـــه استفاده چه‌په تیکوئی پخوی اوتازه‌لشل شوی شدوکی چه جوش هـــم نه‌ورکوی خوړل کیږی دخاروو دساتلو لپاره (پریست) په‌نوم ځایونه جوړوی چــه دشپـــی لخـــوا پکی‌څـــار وی یـــو ځـــای کوی او پکی‌راټولیږی که‌د کوم څاروی‌بچی‌مړشی نودهغه پوست راباسی اوپه هغه‌کی دغره وابنه اچوی دلرگـوپښی ورته جوړوی او دخاروی په لشولوکی په‌هغه‌مالگه اچوی‌اودمورمخی ته‌ئی دروی ترڅو څاروی دغـــه مالگه تری څټی اوپدی ترتیب تری‌شدی لشی اوپه معلومو لوښو کی ورته **دپنیر دجوړولو لپاره جـوش‌ورکوی دشدو ومعلومول او اندازه کول په‌ټول او وزن لرونکو شیانو**نه کیږی یواځی دکتی په‌نوم لرگی په شدوکی کښته کوی ترهغه‌ځایه‌چه شدی ورسیدل هغه ځای پـــه تیره‌شی غوځوی اوپه همدی ترتیب‌ئی اندازه کوی.

دژمی په موسم کی دزیاتی‌واوری اویخنی له کبله دجغرافیی مو قعیت پراساس چه‌معمولاً کورونه ئی‌دری پړیزه جوړوی اوپه هر موسم

کی‌چه په پسرلی کی دشرپوړ ته په کوټه کی اوپه سړو موسمو نو کی‌په منځه پوړچه پدی منجه یامنځنی پوړکی دهستو گنی په خواکی دخاروو لپاره ځایونه (ونتر) په نوم‌جوړ شوی چه د یخنی او واورو په وخت‌کی یو ځای دځانه سره ساتی‌پدی وخت‌کی دخاروو خوراکی مواد دجوارو تانتی ،دغره وچه شوی‌واښه چه دپسرلی په موسمو نوکی جمع ورکول کیږی ددی لپاره چه دخاروو بدن تکلیف نشی نودلاندی اچولو لپاره دغره ځنگلی بوټو پانی‌چه دوار په نوم ئی یادوی په غټو کڅاوی گانوکی چه پشه یان ئی (وارچیری) بولی راوړی اود خاروو لاندی‌نی هواروی تر څو لاندنی برخه ئی نرمه وی او همدا رنگه دسری څخه ئی په زراعت کی گټه تر لاسه کوی ځکه وار یاحیوانی سری‌دهغه ځمکی لپاره‌چه کلکه او حاصل نکوی استعما لوی همدا رنگه دژمی په‌موسمونو کی دکورنه علیحده دخار وو لپاره د(وارا او بارا) په نوم‌ځایونه لری چه‌په هغه ځایونو کی هم‌خپل څاروی لکه په واړاکی غو یان اوپه باړاکی بزی ساتل کیږی مخکی موهم اشاره وکړه چه پشه یان عموماً په‌دری پړیزه کورو نو کی استوگنه کوی چه‌هر یوئی‌جلا جلانومونو لکه شرپوړ منجه‌پوړ اوکنجه پوړ، سرنی کوټه، منځنی‌کوټه، او لاندنی کوټه په لاندنی او کنجه پوړکی یوائی دسوخت‌لرگی د څاروو آزوقه پکی ساتل کیږی تر څودژمی په‌موسم کی ور څخه گټه واخلی .

# د ارو درمل په پښه یانو کې

دبشري ټولنې دجوړیدو سره سم د بیلا بیلو علتونو په اثر دانسانانو په منځ کې ناروغي منځ ته راغلي چه د هغه وخت انسانانو د خپلې پوهې له مخې له دغو ناروغیو سره دخپل توان په اندازه مبارزه کړیده چه دغې مبارزې ددوی له پوهې او اقتصادی پرمختیا سره سمون درلود چه دغه لړی تراوسه پورې دوام لرې.

په لرغونې زمانه کې چه کله به کومه ناروغي پیدا شوه نود هغې دعلاج لپاره به د هغو شیانو څخه کار اخستل کیده کوم چه طبیعت لخوا ددوی پلاس او اختیار کې ایښودل شوي وه. ددې لپاره چه د لرغونې زمانې انسانان پدې نوو قادر چه دطبیعت ځینې اړخونه ترخپل تاثیر لاندې راوړې اود خپل ځان تابع ئې وګرځوي اوپه خپله ګټه ور څخه کار واخلې نوپدې اساس دهغه وخت طب او طبابت ډیر ساده شکل درلود.

دفولکلوری یاوګړنې طبابت محقیقنو دغه طبي جریانونه دتاریخ په اساس په لاندې نومونو یاد کړیدي.

کلدانی طب :هندی طب، اسلامی طب،یونانی اوهندی طب څخه مختلط یو بل جریان چه دمختلط جریان نوم ورته ورکړ شویدی چه زمونږ په هیواد افغانستان کی دغه جریانونو خپله دوره ختمه کړیده چه دهیواد په ځینو برخو کی نو خپله دوره ختمه کړیده خود مختلط طبیعی جریان رښی دعصری او کلیوالی طبابت تر څنګ اوس هم دحکیمانو او طبیبانو په وسیله دهیواد په ځینو برخو کی تود بازار لری اود طبیعی بوټو او دانو او دځینو ونو دپوستکو څخه درمل جوړ وی اود ناروغانو په تداوی کی ورځنی کار اخلی دولسونو او قومونو فرهنګ یا په بل عبارت فولکلوردټولنی دغوره اوملی شتمنیو څخه پدی شمیرل شوی چه دولسو نوپټ رازونه ئی ساتلی نو لیکوال کولای شی چه دخپل ذهن او استعدادله مخی دخپل شاوخوا ولس فولکلوری هغه مسائیل راټول چه تر اوسه پوری پاتی اوددی سوچه میراث د فولکلوری یاوګړنی طبابت په باب چه دیوی اوبلی خولی څخه می راټول کړی محترم لوستو نکوته ئی وړاندی کوم.

**دماشوم دداخلی ناروغی درمل :**

دماشومانو دمریضتیا لپاره له داسی وګړنی طبابت څخه کاراخستل شوی چه کله ماشوم نوی تولد شو ماشوم ته دری ورځی شدی نه ورکوی یواځی چمبړ خیال او سپیرکی چه پشه یان ورته جوانی وائی په معلوم مقدار یو ځای په اوبو کی ښه جوش ورکوی اویوه ټاکلی اندازه ئی ماشوم ته ورکوی چه د یوی خوا ورته غذائی مواد اودبلی خوا دماشوم داخلی تداوی لپاره کار اخلی اوماشوم روغتیا مومی.

**دماشوم دسینه بغل درمل :**

ددی لپاره چه ماشوم په څلویښت ورځو کی سینه بغل نشی نو په کلیو اوبانډو کی دداسی فولکلوری طبابت څخه کار اخلی چه کله ماشوم تولد شی په کورکی سپینه چرګه چه مخکی ورته ساتل شویوی حلالوی اود حلال شوی چرګی شانتیکه چه په پشه ئی ژبه ورته

(کودړیك) وائی دهغی داخلی برخی‌پوستکی راباسی او ژریی پاك پر-
یمنځی اود وچیدو ورسته ئی ښــه میده کوی اوپه کورکی ساتی کله
چه ماشوم سینه بغل کیږی نومیده‌شوی پوستکی دمور دشدو ســره
یو ځای په‌معلوم مقدار ماشوم تــه ورکوی اوپدی طریقه ماشوم روغتیا
مــــومــی.

۱ـ کچیرته پدی درمل‌ماشوم ښه نشی‌نویو صحرائی بوټی چه په پشه ئی
ژبه ورته (تلتا نوړاك) وائی اوپه لږه پیمانه پیدا کیږی رااخلی اود
پیازودپاڼو سره‌یو ځای په خپل‌لاس‌ورغوی کی مخی اوبیائی په یــوه
لمده ټوټه کی تاووی اوپه گرمــوایروکی منډی کله‌چه نیم پوخ شی
نودایرو ښخه ئی راباسی اودیخیدوورسته ئی شیره راباسی اوماشوم
ته‌ئی ورکوی پدی ترتیب ماشــوم‌روغتیا مومی.

کچیرته بیاهم ماشوم صحت اودرمل نشو نوبیا دپیازو وچی پاڼــی
چه کلیو او بانډو کی دتداوی لپاره‌ساتل کیږی را اخلی اوپه معلــوم
مقدارئی دارو په سکروټو اچــوی‌اود ده دلوگی لپاسه مالوچ نیســی
اودلږ گرمیدو ورسته ئی دماشوم‌اومریض په سینه ایږدی پــــدی
ترتیب مریض درمل‌کوی .

او همدا رنگه ددی مرض دعلاج‌لپاره یوبله طریقه هم موجوده ده
چه‌د مریض ملااو سینه دغواو په‌غوړیو ښه مالشوی اودستی ورته
یو طبیعی صحرائی بوټی چــــه‌د(مشبیرم) په نامه یادیږی اوپـــه
خوړونو کی داوبو په خواکی پیــداکیږی راټولوی دهغه پاڼی را اخلی
اوپه ورغوی کی‌مخی اود ناروغ‌په‌سینه اوملاکی ایږدی اومریض تـــه
استراحت ورکوی پدی ترتیب‌مریض‌درمل کوی .

**دماشوم دکانگو درمل :**

ځینی وخت په کلیو او بانډوکی دماشوم‌لپاره دکانگی‌ناروغی پیدا
کیږی‌چه ددی دعلاج لپاره سمدستی‌دخوړونو داوبو دخوا ښخه دایلنــی
پودینی چه پشه‌یان ورته وئیــن‌وائی دهغه بوټی ښخه اوه پاڼــــی

په شمار را اخلی اوداوبو په خواکی په پاکه تیکه تکوی اوبیائی په یوه پاکه تیکه کی ورښخه ددیپانوشیره باسی اوماشوم ته ئی ورکوی پدی درمل دماشوم کانگی بندیږ ی‌اودرمل کیږی .
۲ـ که دماشوم کانگی ونه دریدل‌نوسمدستی ئی دکلی فولکلوری طبیب ته وړی اودهغی لخوا ورته داسی‌هدایت کیږی چه د ماشوم کانگی‌دی په یوه پاك لوښی کی واخستل شی‌اوبیا ددرمی په یوه بندکی واچول شی اوددورمی دواړه سرونه دی‌بندشی اوبیا دغه دورمه درواز ی لاندنی برخه کی ښخ‌شی او همدا رنگه په کورکی دنغریو په منځ کی دری دختیو ښخه جوړشوی مولی‌چه پشه‌یان ورته (دوا) وائی اوتبی کتیوی پری ایښودل کیږی‌دهغو هریو مولی لاندی لږلږ ایره رااخلی اولاس کی دخولی لاړی ور سره یو ځای مخی او دمریض سینه پری مالشوی مریض پدی درملو صحت مومی.

## دماشومانو دغوږونو درددرمل :

په کلیو او بانډو کی کله چه د ماشومانو لپاره دغوږونو درد پیداشی میندی اود کلی نوری ښځی‌چه ماشوم ورته درنگ ښخه معلومیږی ددی درنځ دعلاج لپاره‌دستی‌دغواو غوړی ښه سره کوی اودهوکی ښویلی پکی اچوی ترهغه وخته‌پوری پکی هوږه پریدی تر څو هوکه سم سور رنگ اختیار کړی‌وروسته غوړی تری جدا کوی اود وچیدو ورسته ئی په معلوم مقداردماشوم په‌غوږ کی اچوی پدی‌درمل ماشوم درد ښه کیږی.

## دماشوم دتخرگونو درمل :

په کلیو او بانډو کی دماشوم‌دپیدا کیدو ښخه دمخه دغره صحرا ئی او ځنگلی بوټی (مانو) چه پشه‌یان ورته امبږ وائی راوړی او دهغه پانی ښه وچوی اود وچیدو وروسته ئی په تیکو باندی تکوی اوپه تیکوئی ښه چانوی نوکله چه‌ماشوم پیداشی نوتر دوو میاشتو پوری هره ورځ دماشوم په تخرگونو او سپغزو کی دغه میده شوی

مانو اچوی تر څو دماشوم پـورتـه ځایونه قیصر نشی.

**دسترګو درد درمل :**

کله چه چاته دسترګو دردپیداشی نوددی علاج لپاره دداسی فو-اکلوری طبابت څخه کار اخستـــل شویدی چه دیو ماشوم چه عمر ئی ۲-۳ کالو پوری وی دهغه تشـــی میتیازی رااخلی اوپه یوه پاك ختن لوښی کی اچوی اودهغه سره پـه معلوم اندازه مالوچ یاد ګـډو وړی اچوی اوښه جوش ورکوی او وروسته مالوچ راباسی اودمریض په سترګوئی ایږدی پدی توګه مریض درمل کـوی.

**دلنګی شوی ښځی درمل :**

په کلیو او بانډوکی چـه کله کومه ښځه لنګه شی اوماشوم وز-یګوی ددی لپاره چه ددی په ګیډه کی وینه پاتی نشی نو ښځه دروی اوپوړنی دهغه په ګیډه اوملاتاووی اود پوړنی دواړه سرونه ددوښځو لخوا نیول کیږی اوبیا دواړه ښځی دغه پوړنی یواو بل ښه کشوی تر څو په ګیډه ئی فشار اوپاتی وینه تری خارج شی .

اوکله کله داسی هم کیږی چه ځینی مواد دماشوم دپیدا کیدو ور-وسته چه خارجیږی خارج نشی نوسمدستی دلنګی شوی ښځی په خوله دخپل سر ویښتان ننه باســـــی تر څو (اوق) وکړی داوق او قـــی په فشار پاتی مواد تری خارجیږی اوکه پدی هم خارج نشی نودلنګـی شوی ښځی په خوله کی لاسونـــه منډی تر څو ورته زړه بدی پیــــدا شی اود زړه بدی په اساس اوفشارپه واسطه تری پاتی مواد خارجیږی.

بیائی سملوی اود غواو په غوړیوئی ټول بدن حتی نوکان ئی هـم مالشوی اونهاره ورته دغواو پــه غوړییو کی پخه شوی هګی ورکوی.

ددی لپاره چه دلنګی شوی ښځی ګیډه درد پیدا نکړی نودوه کلچی ګوړه اوبه کوی اوزیات ورته جوش ورکوی اودښه جـو شیدووروسته پکی نیم پاو دغوا غوړی اچـوی اولنګی ښځی ته ئی ورکوی او پــدی ترتیب دګیډی دتکلیف مخنیــــوی کیږی .

ددی لپاره چه لنگون یازیږونه مورته زیات زیان ونه رسوی او جسمی تکلیف سره مخ نشی څوورځی ورروسته ورته دجوشا ندی په نوم یوه شیره ورکوی تر څو دښځی جسم بیا طاقتمند شی.

**جوشانده اود جوړیدو طریقه ئی:**

دمرخانیو ،عناب چه پشه یان ورته شنگری وائی صحرائی بوټی مانو چه پشه یان ورته امبږ وائی دانی دسیبو دانی اویو صحرائی بوټی چه عموماً په خوړونو کی پیداکیږی اوپه پشه ئی ژبه ورته (بلبلو نشاه) وائی دهغه پانیوسره یو ځای په معلوم مقدار اوبو کی چه یوه کلچه گوړه هم پکی اچوی ښه جوش ورکوی دښه جوشیدو ورروسته ئی په یو پاك ټوکرچانوی اوبیائی ښځی ته ورکوی تر څو طاقت پیدا کړی .

**دسنت شوی ماشوم درمل :**

په پشه ئی ولس کی عموماً ماشومان دکلی معلوم سلمانی لخوا سنت کیږی نودسنت شوی ماشوم لپاره داسی طبابت څخه کاراخستل شویدی کله چه ماشوم سنت شو دهغی وینی ددریدو لپاره دغویانو خوشائی یعنی سرگین دوچیدو ورسته چه مخکی ئی سیزلی وی دهغه ایره په زخم پاشی تر څو وینه ئی ودریږی دغه ایره ترهغه وخته پوری په زخم پاشی تر څو زخم جوړشی اوبل دوااو طبابت نلری او همدا رنگه دماشوم سنت اوغوټه شوی غوښه دفیروزی گوتی سره یو ځای دماشوم په ښنه تړی ترهغه وخته دغه غوښه او فیروزه نه باسی تر څو ماشوم ښه صحت پیدا کړی بیائی ځینی راباسی اوپه یوه پاکه تیکه ټوکر کی دتاوولو ورسته په یو پاك ځای کی ښخوی اوپدی ترتیب سنت شوی ماشوم تداوی کوی.

**دسر ویښتانو درمل :**

په ځینو وختونو کی کله کله دځینو عواملو له کبله ځینی خلکو ته دسرویښتانو لپاره مرض پیداکیږی او ویښتان ئی وز ی نوددی د

علاج لپاره دداسی فولکلوری یاوگړنی طبابت څخه کار اخلی چه دمرخا نیو پاڼی راټولوی اوپه معلوم‌مقداراوبوکی په ختینو لوښوکی ښه جوش ورکوی اوبیائی په یو پاك ټوکـــرچاڼوی په هغه چاڼ شوی اوبـــو دصابون اویادشامپوپه ځیر استفاده‌کوی پدی ترتیب ئی درمل کیږی.

**دزیږی درمل :**

کله کله دځینو تاثیراتو لـه کبله چه‌چاته دزیږی مرض پیـــدا کیـږی نوددی مرض دعلاج لپاره‌په کلیو او بانډو کی ورته سندرکـــی گوساله دستی حلالوی او پوستکـــی‌ئی دایستلو سره‌سم مرض‌ته اغو- ندی اودیو ساخت څخه تربل ساخته‌پوری دمریض په غاړه پریدی پو- ست دمریض په بدن کی چسپ‌کیږی‌چه دچسپیدو وروسته‌ئی بیادیعلوم وخت په تیریدو چه پورته اشـــاره‌شویده په چاقو پری کوی اوپوست تری راباسی دپوست دایستلو سره‌سم دمریض په ټول بدن دجوارواوړه مگی اوبیا دری ورځی وروسته دمریض‌ټول بدن په گرمو اوبو منځـــی دغه ورځو کی مریض ته هدایـــت‌ورکوی چه خپل بدن دخارښت پـــه وخت کی ونه گروی ځکه کچیرته‌وگروی نوسمدستی پری دانی‌خیژی نوبیا ددی دانو تداوی داسی کیږی‌چه‌د ایستل شوی پوست څخــــه ویښتان راباسی اوهغه سیزل‌کیږی‌دغواو دغوړیو سره یو ځای کوی‌او دمریض په دانوئی وهی تر څودانی‌ئی وچی اومریض دتکلیف څخـــه خلاصون ومومی.

۲- او همدارنگه دزیړی مرض‌لپاره‌دطبیعی بوټی چه عموماً په ځنگلو نوکی پیدا کیږی اوپه پشه‌ئی ژبه‌ورته (شمکی) وائی په‌معلوم مقدار راټولوی اوهغه ټکوی په معلـــوم‌اندازه تری شیره باسی او مـــریض ته‌ئی ورکوی.

۳- کچیرته درمل‌ئی ونشو نوبیـــاورته صحرائی او ځنگلی بوټی چه تروکی په نوم یادیږی اوپه پشه‌ئی‌ژبه ورته (شوتلیك) وائی دهغــه بیخونه راباسی اوپه خوړونو کـــی‌داوبو ترخوا په پاکه تیگه ټکـــوی

او بيائی يو پاك تڼوكر كی چاڼوی اودهغی په او بو كی معلوم مقدارخاوری يو ځای كوی اومريض ته ئی وركوی پدی تداوی مريض درمل كو ی.

**دسر خوږی درمل :**

په كلی او ولس كی چه چاته دسر دردی تكليف پيداشـــی ددی لپاره مشخص طبيبان شته چه اكثره ئی ملايان او روحانيون دی چــه دروانی تداوی له لاری مريض‌تداوی كوی يعنی مريض اوده يعنی دم كوی همدا رنگه بعضی ښځی هـــم‌دسردردی اودی هم لری دمــريض تندی اوچولی په دووگوتو نيســی‌اود مريض‌سترگی پری پټوی‌اوتندی ورته مړی وروسته ورته وائی‌چه سترگی دی داسی ښيرته كړه چــه نظر دی په لوړ او اوچت غره‌ولگيږی‌چه مرض دی همدومره لری‌وتښتی.

او همدا رنگه يو صحرائی بوټی‌چه پشه يان ورته موس وائی اود پيازو په څيروړی سپينی غوټی لری‌هغه وچوی او بيائی ميده كوی دسر دردی په وخت كی په خپله پــوزه كشــوی.

كچيرته درد كم نشی نود مــريض سراوچلی او اورميږ په تــورو تيلو غوړوی اوترئی زړی دانی چه دمځه ورته ښه ميده شويوی مريض ئی دپوزی له لاری كشوی پـــدی‌طريقه مريض درمل كيږی .

**دخولی دانی درمل :**

كله كله دځينو كسانو پـــــه خوله كی دانی خيژی داچه څــــه علت به لری زمونږ بحث پری اړه‌نلری خود پشه يانو په كليو او بانډو كی دهغه ولسی ذهنيت له مخـــی‌چه پكی رواج لری وائی چه كه دچا په خوله كی‌دانی وخيژی نو دهغه درمل لپاره داسی كار اخستل شوی چه دكلالانو دكلالی ځای چه پشه يان ورته (اوا) وائی دهغه ځــای څخه دی لږه خاوره راوړل شـــی‌او د مــريض پــه خــولــه كی‌دی دواچول شی كه پدی مريض تداوی‌نشونو لنگه بزه په ختمين لوښی‌كی لشی اودهغو شدو (ځك) دی په يوه‌پاكه خمتا تكه تـــول اود مريض دخولی داخلی برخه دی پری‌ومنځل‌شی پدی درمل رنځور صحت مومی.

**دزخم تداوی :**

په کلیو او بانډو کی چه کله دچا بدن زخمی شی ددی لپاره چه زخم ئی قیصری پیدا نکـــړی یـوصحرائی بوټی چه تروکی نومیـږی اوپه پشه ئی ژبه ورته شوتلیـك‌وائی دهغه پاڼی په تیکه ټکوی او دهغه په اوبو ورته زخم پریمنځـی‌اوبیا ورته تیکه یامالوچ څیزی او دغواو غوړیو سره‌ئی یو ځای منحل‌کوی اوپه زخم‌ئی ایږدی دغه تداوی دری ورځی ترسره کوی اودری ورـځو وروسته ورته دپیازو غوټه په ایروکی پخوی او بیائی په‌زخم ایږ دی تر څو ورسته زخم تکلیف پیدا نکـــړی.

**دسترگو دسری مخی تداوی :**

ځینی ځینی کسانو لپاره دسترگو درد او سوزش یا خاربښ پیـــدا کیږی نودداسی درد درمل لپـــاره‌داسی ښودل شویدی چه د غره‌صحرا ئی بوټی چه‌په پشه ئی ژبه ورتـــه (درړ) وائی ددی پاڼی او ورســـره بل صحرائی بوټی چه کچما کوئـی‌بولی دواړو پاڼی یو ځای په معلوم مقدار راټولوی اوپه پاکه گتـــه تیکه ئی ټکوی دهغه څخه اوبـــــه راباسی اود ناروغ په سترگو کـی‌په معلوم مقدار اچوی او ټکول‌شوی پاڼی هم‌د مریض په سترگو ایږدی‌اوسترگی ورته تړی او مـــریض ته استراحت ورکوی پدی درمل‌مر یض دتکلیف څخه نجات مومی .

**دقوزیت درمل :**

ډیر وخت داسی پیښیږی چه دغذائی رژیم داختلاف له کبله‌ځینو کسانو ته دقوزیت ناروغی پیـــداکیږی په کلیو او بانډو کـی ددی تکلیف دعلاج لپاره دمړ غونی دانی‌ورکوی چه عموماً دغه دانی پـــه اخری مرحله کی دوه دانی ښـودل‌شویدی که مریض صحت نشی نـو بیا ورته پنځه دانی زړی یو ځـل‌مریض ته ورکوی په‌دی صورت‌کی مریض روغتیا مومی .

## دجراتی ښځی‌درمل :

دځینو تاثیراتو له کبله داسی‌پیښیږی چه ښځو ته دجراتـــی یا دوینی جریان پیدا کیږی نوددغـــه ناروغی دعلاج لپاره دداسی طریقو څخه کار اخستل شویدی.

۱- دهګی پوستکی ښه پر منځی او بیائی ښه میده کوی‌دچاښو وروسته ئی یووار نسوار وپه اندازه سهارپه نهاره دشدو سره خوری.

۲- دبزو ښکر رااخلی اوهغه ښه‌سوزوی اود سوزیدو وروسته ئی ښه‌میده اودچاښو وروسته ئی ورسر ه (شکرتلی) یو ځای کوی او په نهاره‌ئی خوری دمریض پـــه شادسپغو لوپتی ایږدی.

۳- دولی نازکی نغلی او نازکی‌پانی‌شکوی اوبیا داوبو په‌غاړه په‌تیګو باندی ټکوی اودهغه اوبه شیره راباسی او ورسره په معلوم مقـدار میده شوی رانجه یو ځای کوی اودمالوچو په منځ کی دګولی په څیر مریضه ښځه دخپل مادر زادی ځای‌کی ایږدی دغه ګولی دری ځلـــی ایښودل کیږی اوروسته دنار ینـــه‌دسر ویښتان په ختین لوښی کـــی سیزی اولوګی ته‌ئی خپل‌مادر زادی‌نیسی اووروسته سریش اوزرچوبه میده کوی اودری سهاره ورتـــــه‌کپه ورکوی ناروغ پدی درمل صحت مـومـی .

## دغولنی دانی درمل :

په‌کلیواو باندونو کی‌دځینوکسانو په سترګو کی دانی خیژی ددغو دانو دتداوی لپاره داسی عمل کوی‌چی یو دانه غوز رااخلی اوپه اور کی ئی سوزوی اود سوزیدو ورسته‌ئی ټکوی اوپه دانه‌ئی وهی ترهغه وختـــه دا عمـل تکرار وی تر څودانه سوری شی بیاور باندی دصاـ بون څخه جوړ شوی یوه پتی لږوی‌پدی ترتیب مریض درمل کوی.

## دپیچ اواسحال درمل :

په ځینو وختونو کی دبعضـــی‌نارو غیو لـــه کبله ځینی کسان‌پیچ او اسحال کیږی نوپه کلیواو باندوکی ددی مرض دعلاج لپاره سمد ـ

ستی یو صحرائی ځنګلی بوټی چه عموماً دتیګو اوتړو په منځ کی پیداکیږی اوپشه یانئی (کچنپټیک)په نوم یادوی دهغه بیخونه چه دپخوانه ددی مرض لپاره په کورونوکی ساتل کیږی ښه میده کوی اود چاړو لووروسته ئی دیووارنسوار په اندازه په یوه هګی کیچه لړپه اوبو که جوش شویوی سوری‌کوی اومید ه‌شوی پورته اندازه‌پکی اچوی اوپه سهار کی نهاره ناروغ ته‌ورکوی ناروغ‌صحت اودرمل‌کیږی دغه ښودل شوی درمل دجراتی‌ښځی‌لپاره هم اکسیر ښودل شویدی.

## دماشومانو دغوږ ونو درمل :

په کلیو او بانډو کی کله چه دچاپه کورکی دماشوم لپاره دغوږ ونو درد پیداشی نو سمدستی ورته‌دغواو غوړی ګرموی اوشیرګرم ئی معلوم مقدار څو تڅکی په غوږ کی‌ورته اچوی اوسری‌غوا خوشائی یا سرګین تازه رااخلی اوپه یو ټوکرکی تاووی اوپه ګرمو ایرو کی ښخوی دښه ګرمیدو ورسته‌ئی را‌باسی اوپه بل ټوکر کی تاووی اود ځای‌په پسرلی موسم‌کی ښخه‌جوړوی‌ونوله پاسه‌ئی ایږدی پدی عامیانه وګړنی درمل رنځور درمل کیږی.

## دماشوم داسحال تداوی :

دځینو تاثیراتو له کبله کله‌چه دماشومانو لپاره داسحال مرض پیدا کیږی نودداسی مرض دتداوی‌لپاره دداسی وګړنی طبابت څخه کار اخستل شوی چه یوپتنګ چه په پشه ئی ژبه د(کلال) په نوم‌یادشوی اودغه تپنګ همیشه‌دکور په ځینو برخوکی دهستو ګنی ځای په پسرلی موسم کی جوړوی‌نودغه خاوره میده کوی او بیائی په‌اوبو کی منحل کوی او ناروغ‌ماشوم ته‌ئی ورکوی پدی صورت کی ماشوم درمل کیږی.

## دتبی لپاره درمل :

کله کله داسی کیږی چه ځینوانسانانو لپاره تبه پیدا کیږی او دغه تبه دوام پیدا کوی ددی مرض‌دعلاج لپاره دداسی وګړنی طبابت

څخه کاراخستل شویدي‌چه دمریض‌دخپلوانو لخوا یو کارغه زاغ‌پټ‌دول نیول او حلالیږي ترڅو مریض پری‌خبر نشی بیائی په غوړیو کی ښه سور کوی اومریض ته ئی ورکوی‌کوشش کوی‌چه زیات وربانديډډي وخوري بیا ورته وائي چه دکارغه‌غوښه مودر کړه مریض زړه بدی اوکانګی کوی پدی درمل رنځورصحت مومی وائی چه کارغه دهغی تبی لپاره‌چه هره ورځ‌مریض باندیحمله کوی مفید او اکثیر ښودل شوی.

### دسردویښتان تداوی :

کله کله داسی پیښیږي چه‌په کلیو او باندوکی ځینو ښځو اویا نارینو ته دویښتانو مرض پیداکیږي اود سر ویښتان ئی وزی په‌کلیو او باندوکی دداسی رنځ‌دعلاج لپاره سمدستی یو صحرائی بوټی مانو چه پښه یان ورته امبږوائی دهغه پانی راټولوی او هغه په اوبو کی ښه جوشوی او بیائی‌دچانو لو وروسته خپل سرونه پر یمنځی پدی ترتیب مریض درمل‌کوی. او همدا رنګه ښځی دخپل‌سر ویښتان داوږد اوزیاتیدو لپاره‌دداسی وګړنی طبابت څخه کاراخلی چه بیګانی دانی چه پښه یان‌ورته (راغن) وائی رااخلی دیو صحرائی بوټی سره چه یو (مارنا) په‌نوم یادیږي یو ځای وچوی اودښه وچیدو ورسته ئی ښه میده کوی اوپه‌خپل‌سرئی دویښتانو په بیخو نو کی پاشی پدی ترتیب دښځو ویښتان‌زیات کیږي .

### مل جوتنی یادسوزاك درمل :

کله چه په کلیو او باندو کی‌چاته دسوزاك مرض پیداشی نو سمدستی دهغه دعلاج لپاره یوبوټی‌چه عموماً په نمناکو ځایو کی پیدا کیږي او سیزونکی په‌نوم یادیږي‌او پښه یان ورته (شونوکو) وائی دهغه بیخون رااخلی اوپه اوبو کی‌ورته ښه جوش ورکوی اولږ دیخیدو ورسته مریض اودس پری‌کوی او همدا رنګه دمانو پانی په اوبو کی ښه جوشوی او مریض‌پدی‌اوبو باندی هم اودس کوی پدی وګړنی طبابت مریض درمل کوی .

### دقیصر درمل :

ځینی وخت داسی پیښیږی چه دځینو ښځو ملایا گیډه درد کــوی نوددی رنځ دعلاج لپاره دداســیوګړنی طبابت څخه کار اخستل شو یدی چه دغره وانبه چه په پښه یانوکی دبلی په نوم یادیږی راوړی اوهغه په ختینو لوښو کی جوشوی‌اودښه جوشیدووروسته ئی‌را اخلی او به ئی چاڼوی ترڅو گیاوانبه تری‌بلکل له منځه لاړشی دلږ یخیــدو ورسته ئی مریضه ښځه دنامــه کښته پدی اوبو کی کینوی ښائــی مریض ښه شی که مریض پدی هــم‌ښه نشی. نو لاندی طریقو په درمل کی استفاده کوی .

دسروغنمو بوس دښځی دســرویښتان او چرګانو ښکی یو ځــای کوی اوپه ختن لوښی کی ورتــه حــرارت ور کــوی تــر څــو او بــــه ښــه جــوش شــی‌لمړی ښځه دغواو په غوړیو ښــه مالشوی اوپرتوك باسی اوپه چپر کټ‌ئی کیښنوی اوشاو خواته ئــی برستنی اویا شړی گانی تاووی اودچپرکټ لاندی دغه جوش شــوی او به ایږدی داوبو دبخارپه واسطه ښځه خوله کوی اوزیات مواد تری خارجیږی پدی توگه مریض تداوی‌کیــږی .

### دسوزیدو درمل :

کله چه څوك داور په واسطه وسیزی کچیرته کم سوی وی نـو دده دعلاج لپاره یواځی دکچالا نوپوستکی ایږدی سوی ځای نه تناکی کیږی اونه قیصری پیدا کــوی اوپدی لاره کی درمل کیږ ی. اوکــه زیات سوی وی اوزخم ئی اوبه پیداکړیو ی‌نو دائیگی وازده چه پشه‌ـ یان ورته (ائینچ) وائی پیدا کوی‌اوپه زخم باندی وهی اوبیا دجوارو ډوډی دچرگانو هدوکی یو ځای‌سره‌سیزی اوښه ئی میده کوی اوپه‌زخم ئــی پاشــی چــه د هغــه لپا ســه صحرا ئی بــو تــی چه په پښه ئی ژبه ورته (یکنداز)وائی میده کوی اوپاشی پدی درملو ئی مریض درمل کیږی.

### داولاد نه‌زیږیدو درمل :

ځینې وختونه دځینو رنځونوله کبله داسی پیښیږی چه دښځــی

ولادت نه کیږی نوددی درمل لپاره لاندی فولکلوری طبابت ښځه کار اخلـــی .
۱ـ یو ځوان چرګوړی رااخلی اوهغه حلالوی اوپه نیم پاو غوړو کی ښه سور کوی اوبیا پکی (۸) پیالی اوبه اچوی اوښه ئی جوشوی کله چــه څلور پیالی په اندازه پاتی شو نوغوښه تری باسی اوپه هغی کـــی بیانیم پاو چمبړ خیال اویو غـــوزه په اندازه ګوړه پکی اچوی اوپکـــی ښه منحل کوی بیا پکی ۲روپی تول په اندازه تورمرچ ، لونګ ، دارچنی، سونډ ، تورلاچی ، شین لاچی، چــه دپخوانه ئی ښه میده کړیوی اچوی، نومړی مریض دغواو په غوړیـــو ښه مالشوی اویوه کپه میده شوی مواد ورکوی اولپاسه ورته دغــه شوروا ورکوی.
دمریض په ملا داسپفوغ لـو پټـــی ایښودل کیږی .
۲ـ دانه مرچ ، لونګ ، دارچینی ، تور لاچی ، شین لاچی ، زیره ، جوانی بادیان، جیفل، زغفران ، پـو پلی، زرچوبه په معلوم مقدار را اخلی اودیوه لپه سرو غنمو سره یوځای ښه میده کوی اوښه ئی چاڼوی اوبیا داسی یو ه چرګه چه هګی اچولو ته برابره وی حلالوی دپاکولوو روسته ئی کلمی داسی په احتیاط را باسی چه ګیډه ئی زیاته څیری نشی دپر یمنځلو ورسته میده شوی دوا توله پکی اچوی اوبیرته ورته ګیډه په ډیر احتیاط ګندی تر څو اوبه پکی داخل نشی او نور میده شوی دوا تری خارجه نشی اوبیا دغواو پـــه یوه پاو غوړوکی ښه سور کـــوی دومره اوبه پکی اچوی تر څوچرګ پکی پټ شی دښه پخیدو وروسته ئی راباسی . اود هغه په شوروا ښځه اومیړه دواړه ځانونه مالشوی اوبیا دچرګی ښخه دوا راباسی اوپه یوه لوښی کی اچوی غوښه او شوروائی په شریکه خوری او ځانونه خولی کوی پدی ترتیب داولاد دپیدا کیدودرمل پــری کــوی.

**دسپی دچیچلو درمل :**

په کلیو او بانډو کی که څوک دسپی دچیچلو پواسطه زخمی شی دکور ښخه لږه ډوډی اومرچ پلـــی راغواړی یومړی دلږ مرچو ســـره مریض ته ورکوی اوباقی پاتی ډوډی اومرچ سیزی اوښه ئی میده کوی او

دزخم لپاسه شیندی اوهمدارنګه یرچ پلی څیزوی اوزخم لپاسه ئی ایږدی پدی درمل زخم تداوی کوی.

**دسرخبارو درمل :**

کله کله دځینو تاثیراتو لــه کبله دځینو انسانانو په وجود کی داسی دانی‌خیژی چه سوخت اوخاربښ‌هم کوی ددی دانو دعلاج لپاره‌داسی تداوی ښودل شویده یوه روپی تول‌نیلا طوطیا اودوه روپی تول ګوګرد سره‌یو ځای ښه میده کوی اوٌدمیده‌کیدو وروسته یودانه هګی‌را اخلی اوپه ډیر هنرئی ورته سر سوری‌کوی‌اودهګی سپینی اوبه تول تـری لری کوی اومید ه‌شوی دارو پـــه هګی کی‌اچوی اوپه ډکی‌هګی‌زیږدارو سره منحلوی اوبیا ورته دغنه‌واوږه‌انښری اوهګی پکی تاووی اولـــږ څه دهګی سرچه بخار تری خارج‌شی‌پریږدی اوپه ایروکی ئی ښخوی کله چه اورئی وسوزی نو بیرتـه ئی راباسی دهغه څخه لس دانـــی ګولی جوړوی اوپاتی دغواو دغوړیوسره‌یو ځای کوی اودچر ګانو پـــه ښکه په دانو وهی پدی تـــرتیب‌دانی وچیږی.

**دبی هضمی درمل :**

په کلیو او بانډو کی چه چاته بدهضمی پیدا شی یو صحرائی‌بوټی چه عمومـاً په ځنګلو نوکی پیداکیږی دمی‌دانی په‌اندازه دډوډی په یوه مړی کی رااخلی اومریض تـه ئی‌ورکوی داعمل دری ځلی تکراروی پدی صورت کی مریض‌درمل کیږی.

**ګوس مونلیك دائی درمل :**

په کلیو او بانډوکـــی ځینوکسانو په سترګو کی دانی خیـژی ددا‌سی دانو دعلاج لپاره یوه پلـی‌هوږه را اخلی‌او پاکولو وروسته‌ئی په‌یوی باندی سولوی او بیا ئـی‌په دانه باندی وهی اودانه درمل کوی .

**دډومبلی یاموچونئیك دانی درمل :درمـل :**

دځینو تاثیراتو له کبله دځینوکسانو په پستو عضلاتو لکه ورون اوداسی نورو ځایوکی دانی خیـژی‌دداسی دانو دعلاج لپار ه‌وګړنـــی

طبیبان داسی درمل کوی چه یوغوزرااخلی اوپه اورکی څیزوی بیائـی تکوی اوپه دانه ئی وهی دا درمـل ترهغه وخته تکراروی ترڅو دانـه سوری شی اوبیا دسور کیدو وروسته وربانــدی دصابون پټی لګـوی پدی ترتیب درمل ئی ترسره کیږی.

**دشنی دانی درمل :**

دغه دانه چه عموماً دپښو په تلی یا پونده کی‌را خیژی نو کله چه داسی دانه دچا لپاره پیداشـــی‌نوپدی کلیواو بانډوکی ددی لپـاره داسی درمل کوی چه دسری غواتازه‌خوشائی رااخلی اوپه یوه لمده‌تیکه کی تاووی اوپه اورلرونکی ایروکی‌ښخوی دګرمیدو وروسته ئی راباسی اوپه دانه ئی ایږدی دادرمل در ی‌ځلی تکراروی اوبیا په کلی کـــی معلوم طبیب ته ورځی چه دهغـــی‌لخوا په‌هډوکی دانه عملیات یـــا څیرل کیږی چه دانی څخه مـــوادخارجیږی بیاور باندی په اور کـی پوخ شوی پیاز ایږدی تر څوزخـــم‌ناسور او یا قیصر نشی .

**دمردار دانی درمل :**

په څینو وختونو کی دځینو تـاثیراتو له کبله په ځینو کسانو باـ ندی دانی راخیژی نو ددی دعـلاج‌لپاره په پشه ئی سیمو کی داسی تداوی کیږی چه د چت لوکی چـــه پشه یان عموماً دکور نغریو کـــی اورونه بلوی راټولوی اوهغه میده‌کوی اودښه چاڼولو ورسته بیـــا دتریو انارو اوبه راباسی اود چت‌لوګیو سره‌ئی یو ځای کوی او پـــه معلوم اندازه نیلا طوطیا پکی اچوی‌اودچرك په ښکه ئی منحلوی او په همدی ښکه‌په دانو باندی وهـــی‌پدغه وخت کی کوشش کیږی چـــه لاس دانو ته نژدی نکړی ځکه امکان‌شته چه په‌لاس باندی دانی‌وخیژی.

**دغاښونو درد درمل :**

کله کله ځینو انسانانو لپاره‌دغاښونو درد پیدا کیږی نـــوددی تکلیف دعلاج لپاره په پشه‌یا نوکی‌داسی درمل صورت نیسی چه کله چاته درد پیداشی نویو صحرائـــی‌بوټی چه‌په پشه ئی ژبه ورتـــه (موس) اود پاڼو شکل‌ئی کندنی ته‌ورته وی دده بیخونه چه وړی‌دپیاز

وپه ښير غوټې لري اوتور پوست‌تري لري کوي اود وچيدو ورسته ئې ښه ميده کوي اومالګه ورسره‌يو ځاى کوي لمړى غاښنو ته په دنداسه ښه پاکوي اوبيا دغه ميده‌شوي غوټه په خپلو ګوتو په‌غاښنو نو مخې لږ وخت ورسته دغاښنو نوررويو ښخه اوبه جاري کيږي او پدي درمل دغاښنو درد درمل‌کيږي.

**دچيچك مرض درمل :**

په کليو او بانډو کې کله چه دچيچك مرض پيداشي نودده درمل داسې کوي چه په‌کلي کي هغه ځوك چه دچيچکو دانې پرې ختلې وي دهغه دوجود دانو پوستکي چه وچې شويوي راټولوي اوديو صحرا ئي بوټي چه (بوتو) په نوم‌ياديږي‌دهغه پاڼو سره‌يو ځاى ټکوي اوبيا ئې دوچيدو وروسته‌ميده اوچاڼوي‌اوبيا په‌کلي کي معلوم او مشخص طبيب چه د پخوانه پکې مهارت لري‌ورل کيږي طبيب لمړى دماشوم‌دښې لاس په مړوند يامټ باندي اول دخپلي خولې لاړى اچوي اوپه لاړو باندي ميده شوي صحرائي بوټي‌او پوستکي چه‌يو ځاى سره ميده شويوي اچوي او وروسته دګنډلوستنې چه‌په تاريو ځاى تړل‌شويوي هغه مشخص ځاى چه ميده شوي‌دارو پرې پراته وي هماغه په ستنو چوخې تر څو چه وينه ووزي‌طبيب کوشش کوي چه دوادو ينې سره‌يو ځاى‌کړي بيا بل صحرائي‌بوټي‌چه شلخي نوميږي دهغه پاڼه په زخم باندي ايږدي ماشوم په دريم‌ورځ تبه پيدا کيږي اود چيچکو دانې پرې خيژي نوپدي صورت کي‌دتکليف سره نه‌مخامخ کيږي او که پدي درمل‌په ماشوم دانې ونه‌خيژي‌نوبيا ورته دسته دانه په‌نوم اوه رقمه دانه باب لکه غنم، جوار، کلول، لوبيا موشتا، نسك ،وريجي يو ځاى‌پخوي اوبيا دپخيدو وروسته‌ددى دانو اوبه ماشوم ته ورکوي‌او ماشوم په سوررنګي بستره کي چه‌لاندي اود پرستنې لپاسه وربانډي خاکشير پاشي پدي صورت کي په‌ماشوم دانې راخيژي ددى لپاره چه ماشوم‌ته دګيډى‌درد پيدانشي دغوائي‌هډوکي چه‌لږ غوښه ولري راوړي

اومکمل یوه‌ورځ ورته جوش ورکوی‌اوبیائی شوروا ماشوم ته ورکوی ماشوم ته‌پدی رنځ‌کی پیچ اواحصال‌نه پیدا کیږی .

اوهم ددوی دعقیدی له مخې‌مریض ته ځینی مواد لکه دغوائی بنکر، دښځی ویښتان دچرګانو پانی‌اود لاروخس او خاشاك چه ورسره ماښو یو ځای وی‌په یوختن لوښی‌کی اور رااخلی اودغه شیان پری اچوی اود ماشوم کټ لاندی ایږدی‌پدی ترتیب ماشوم درمل کوی.

**دخنډی اوسږی تبی درمل :**

په کلیو او بانډو کی کله کله‌ځینو کسانو نه خنکی یاسږه تبه پیداکیږی نودده درمل لپاره دداسی‌وګړنی طبابت څخه کار اخستل شویدی چه بزه ورته حلالو اوپو ستکی‌مریض نه اغوندی اود یوی شپی تیریدو وروسته ئی‌ترینه باسی‌اوبیا دمریض بدن په‌گرمو اوبو منحل کیږی او همدا رنګه په ځینووختونو ځینو کسانو نه دځینو مرضونو له کبله دلاسونو اوپښو‌پرسوب پیدا کیږی نوددی مرض ددرمل لپاره هم دبزو پوستکی‌اکثیرښودل شوی .

**دشو کوری اوکم بینی درمل :**

کله کله داسی هم کیږی چه‌ځینو کسانو ته دشوکوری مرض پیدا کیږی چه د شپی لخوا هیڅ‌شی لیدلی اویاد ورځی لخوائی دید کم‌وی اومشکل سره‌مخ‌وی نوددی‌رنځ دعلاج لپاره دداسی وګړنی‌طبابت څخه کار اخلی چه دغره ځنګلی‌بوټی چه پشه‌یان ورته (ماميرا) وائی دهغه بوټی بیخ چه شکل‌ئی‌هوګی غوټی ته ورته او سپین رنګ لری راوړی اوهغه وچوی دوچیدو وروسته‌ئی ښه میده کوی اوډ چانولو وروسته‌ئی په سترګوکی درانجو په څیر وهی دسترګو څخه زیات اوبه خارجیږی او مریض‌پدی ډول درمل کوی.

**دماشوم دنری رنځ درمل :**

په کلیو او ولسونو کی ډیروخت داسی کیږی چه ځینی ماشومان زیات مریض او ورځ په ورځ‌وچیږی اوغوښه ئی دبدن څخه کمیږی نو دده تداوی داسی کیږی چه‌دغره‌یو ځنګلی بوټی چه پشه‌یی ژبه

ورته (سربولی) وائی چه شکل‌ئی‌گازری ته ورته اود جسم له مخی وړوکی دی داسی‌را باسی چــــه دایستلو په وخت کی باید نه دانسان اونه دحیوان غږ پدغه وخت وانــه اورئیدل شی بیائی په خپله پښه یاورون کی‌تړی اوکلی ته ئی راوړی‌اوبیائی خوړته وړی اوپه پاکــه تیکه ئی تکوی اومریض ته چه داوابو په خواکی ئی کښینولی وی پــه ناسته ورکوی پدی ترتیب درنځوردرمل کیږی اود عقیدی په لحــاظ ویل شویدی په‌هغه لاره چه‌راوړل‌شوی باید مریض په‌هغه لاره ونه وړل شی بیاپری دارو تاثیر نکوی.

## سپونی دانی درمل :

کله کله د ځینو انسانا نو په‌مخ ښټ، لاسو نو باندی دسپونـــی دانه خیژی نوددی دانو دعلاج لپاره‌یو صحرائی بوټی چه عموماً دتیګــو اوتړو په‌منځ کی په‌کمه اندازه‌پیداکیږی اوددی بوټی شکل ورخاړی‌ته ورته دی راټولوی اوهغه تکوی اوبیائی په سپونی ایږدی. او همدا-رنګه هغه ښځه چه لنګون او او-لادئی په کیدہ کی‌وی دهغه پـــه شدو دانه منځی نوپدی درمل دانه وچیږی اوکه پدی درمل دانه وچه نشی نودګلابو وچه‌ډو، لښتی تــه‌اور ورته کوی دهغه ښخه غوړ را وزی هغه په دانه وهــل کیـــږی‌دا نه وچیږی اوپدی لاره‌کی مریض درمل کیږی .

## دستونی درد درمل :

کله کله د ځینو عواملو لــه‌کبله ځینی کسانوته دستونی درد پیدا کیږی نوددی رنځ دعلاج لپاره‌داسی درمل ښخه کار اخلی.

۱- یوه روپی تول خاوری او یـــو قران تول نیلا طوطیا رااخلی اوبیا تبی په‌اور ایږدی کله چه ســره‌شوه اول پری خـاوری اچـــوی خــاوری وئیلـــی کیږی او جوش‌کوی وروسته نیلاطوطیا چه میده شویوی په خاوری باندی لږ لـــږپاشوی تر ښو اوبه ئی وچ شی بیــا یوتریو انار رااخلی اودهغه نیمائی‌اوبه راباسی او لږ لږئی په دوا باندی اچوی‌تر ښو ددی اوبه هــم‌وچ‌شی کله‌چه داروښه وچ شـــی

بیائی دتبی څخه رااخلی اوښه ئی‌میده کوی ددی څخه دری‌پوړی جوړ وی چه‌هره پوړی بیادیو نلکـــی‌پواسطه دمریض ستونی ته پـوو کوی که پدی درمل جوړ نشی نـــوامکان لیدل کیږی چه مریض‌د(بوو) په مرض‌اخته شـوی نـــو ددی‌مرض دعلاج لپاره دداسی درمـــل څخه کار اخلی چه دیوی روپی تول‌شنگروپ رااخلی اوښه ئی میـده کوی اودهغه څخه اوه پوړی جوړوی بیاچلم رااخلی اوښه ئی پریمنځـی په سرخانه کی ورته وربشی‌اچوی‌دهغه لپاسه اور ایږدی اومـریض داسی ځای ته وړی چه هیڅ آوازپری ونه لگیږی بیاپه اور بانـدی یوه پوړی اچوی اومریض چلم‌کشوی‌هغه وخت چه دپوړی لوگی ختم‌شی نومریض ته استراحت ورکوی اوه‌ورځی چه پوره شو اوپوړی ختم‌شو نودمریض اوری اود خولی داخلـی‌برخه پړسیږی نودپړ سوب دعـلاج لپاره بیایو صحرائی بوټی چه پـه پښه‌ئی ژبه ورته (سومن) وائـــی راټولوی اوپه یو داسی ختبین لو ښی‌کی چه دغوړیو دیك پکی نـوی شوی دغه بوټی په اوبو کی جـو شوی دده بخارته دمریض خولـه نیول کیږی اود یخیدووروسته پری‌خوله کنگالوی چه پدی بخاراوپه‌او بوئی دمریض دخولی څخه زیـــات‌اوبه خارجیږی اوپړسوب ئی لـــه منځه ځی مریض څلوینبت ورځـــی‌په ځای کینوی اوبی مالگی ډوډی چه خمیر هم نوی پتیره ورکـــول‌کیږی او وړوکی چر گوړی ورتـه حلالوی اوبی مالگه آب‌جوش کـوی‌اومریض ته‌ئی ورکوی پـدی ډول مریض درمل کیږی .

**مات شوی هډو کی درمل :**

د ځینو حوادثو له کبله دځینوکسانو دلاس یاپښی هډوکی ماتیږی نوددی درمل لپاره دستی مریـــض‌دکلی او باندو مشخص طبیب تـــه وړل کیږی چه بیا دهغو لخوا هډوکی‌په ځای کیږی اوبیا دخمتا په تکـه باندی دهاگیو زیړ اچوی اود تکـی‌یومخ دهاگیو په زیړوا خروی‌اوپه مات شوی ځای‌ئی تاووی اوبیا ئـی‌لپاسه دورمی په‌مینځ‌کی تیلی‌کوی اودتکی لپاسه ایږدی اوبیائی پـه تارونو کلك تړی تر څو هډو کـی

بیرته ښه شی چه دجوړیدو ورسته هم دمعلوم طبیب لخوا خلاصیږی.

**دخزندو درمل :**

داچه پښه یان عموماً مالدار اودژوند زیات ضروریتو نه ئی په مالداری تر سره کوی نوپدی اساس ځینی خزندی لکه ورګه، کټ ملی، سپګه، کونی ،کرتوك، خسك اوداسی نور مضرر حشرات لکه مار، لړم ،غنډل، اوداسی نورو حشراتودله منځه وړلو په خاطر چه په کوم ځای کی پیداشی نو سمدستی دانارو پوستکی اومرچ سره په معلوم اندازه پیداکوی هغه رااخلی اوپه نغری کی چه مړاوی اورپکی موجود وی اچوی دروازه کړکی ټول تړل کیږی تر څو هواپکی خارج اوداخل نشی اودمعلوم وخت په تیریدو بیرته درواز ی او کړکی خلاصوی پدی ترتیب دحشراتو څخه ځان خلاصوی .

**دسپږو دورکیدو درمل :**

دژمی په موسم کی دزیاتی یخنی له کبله په سږو سیموکی یو اندازه سپږی پیدا کیږی نوددی حشرا تودله منځه وړلو لپاره دوګړنی داسی درمل څخه کار اخلی .

۱ـ یو صحرائی پتنګ چه عموماً دګلانو او شبنم لرونکو او تازه تر کاریو کی پیدا کیږی رنګئی توراوبرګی وزرونه لری نیسی اوپه خلتوکی اچوی کله چه دغه پتنګان مړه اووچ شونو دهغه وزرونه را باسی اوسرونه تری غو څوی اوبیائی د (بیکانی) چه پښه یان ورته (راغن) وائی یو ځای دوچیدو ور سته ښه میده کوی په خپلو بسترو لباسو نوکی دغه میده شوی دوااستعما لوی اوپدی ترتیب ددی مشکل مخه نیسی .

**دچرګانو دمرض درمل :**

په ځینو وختونو کی داسی پیښیږی چه په کلیو کی دتغی په نوم مرض پیدا کیږی نوکله چه دچا په کورکی چرګان تغی ونیسی نودستی ورته پیاز تکوی اودجواروداوړو سره یو ځای چرګانو ته ور کوی اوپدی درمل دچرګانو دمړینی مخه نیسی .

## دآتشك دانو تداوی :

په ځینو وختو نوکی دجلدی ناروغی له کبله دځینو انسانانو په لاسو یالینگو باندی دانی خیژیچه ځینی ورته پمن دانی هم وائی دداسی رنځو ددرمل په خاطر په معلوم مقدار نیلا طوطیا را اخلی هغه دغویانو په تازه خوشا یانوکی ایږدی اوهغه کلوله کوی اود اور په سرئی ایږدی ترهغه وخته چه خوشائی ښه وسوزیدل او ایره شو نونیلا طوطیا کوشته کیږی بیائی راباسی نیلا طوطیا داور دلوگو سره یو ځای ښه میده کوی اوبیا ئی دتازه کوچو سره منحلوی اوپه دانوئی وهی دانی وچیږی دغه درمل ددرب دانو چه ځنی ورته لت هم وائی اکثیر ښودل شوی .

## دباد رنځ درمل :

په کلیو او بانډو کی ځینو کسانو ته دباد ودرد په نوم تکلیف پیدا کیږی اوحرکت گرځیدل په آسانی نشی کولای ددی درد درمل لپاره دداسی وگړنی طبابت ښځه کار اخلی چه دو دیالوگی راټولوی دغواو دغوړیو سره ئی یو ځای کوی اوپه هغه ځای چه درد کوی ایږدی اوپدی لاره کی درنځور درمل کوی.

## دیخوهلو درمل :

په ژمی کی دزیات یخنی له کبله د ځینو کسانو لاسونه یا پښی یخ وهی او تکلیف سره مخ کیږی اوهغه ځایونه چه یخ وهلی وی اوبلن کیږی نوددی دعلاج لپاره پشه یان داسی درمل کوی چه دلمسی نبت یو ټوټه رااخلی اوهغه یوځای کی چه لاندی ورته هاوارلرگی وی اچوی اوبیا ورته اوبه جوشوی اچوی او مالگه پری دوړ وی تر څو مالگه په دی ټوټه کی ښه جذب شی بیائی اورته نژدی نیسی اوپه لاسونوئی ښه مگی ترڅو ښه گرم شی اومالگه پکی ورکه شی بیائی په هغه ځای چه دردکوی ایږدی اوپدی درمل رنځور درمل کوی.

## لړزه یاملاریا تبه :

په ځینو وختونو کی کله کله کیږی چه ځنی کسانو ته دناروغی له کبله لړزنده تبه پیداکیږی نوپه کلیو اوبانډوکی ددی

مرض دعلاج لپاره دداسی وګړنـی طبابت څخه کار اخلی چه دولـــی دونی څخه پاڼی راوړی اود مریض ټول بدن باندی پاڼی ایږدی پــدی ترتیب درنځور درمل کوی.

### دماشوم دکانګی او اسهال درمل:

کله کله دغذائی درژیم لـــه کبله ماشومانو ته داسی مـــرض پیدا کیږی چه هم اسهال اوهــــم کانګی کوی کانګی اواسهال ئـــی زیات بوی کوی نوددی تکلیف دـعلاج لپاره داسی کوی چه یو صحرا ئی بوټی چه عموماً په خوړونو کی پیدا کیږی اوپښه یان ورتـــــه (وینن) وائی هغه دبیخونو ســره راباسی اوښه ئی پریمنځی اوبیا ئی په پاکه تیکه ټکوی اوشیره ئی باـسی اود ماشوم لباسونه چه ورته اغوستل کیږی پدی اوبو کی لمدوی اوماشوم ته ئی اغوندی اویوه اندازه شیره ماشوم ته ورکوی پدی درمل ماشوم صحت پیدا کوی او همـدا ـ رنګه ټکول شوی ګیچه دماشوم په سینه اوشا باندی ایښودل کیــږی اوبیا وربااندی په شیره کی لـــوند شوی کالی اغوندی اوپدی طریقــه ماشوم درمل کوی.

### ددانو درمل :

په ځینو وختونو کی دځینـــوانسانانو دبدن په ځینو پستو ځایو نوکی داسی دانی خیژی چه هیــڅ نه سوری کیږی اومریض دمشکل سره مخامخ کیږی نودداسی دانـــودسوری کیدو لپاره دداسی وګړنی طبابت څخه کار اخلی چه یو صخرائی بوټی (سیزونکی) چه پښه یان ورته (شونوکو) وائی ماښو پاڼــــی اوبل صحرائی بوټی چه په پښه ئی ژبه ورته (ګوټیك) وائـــی د بـــل صحرائی بــوټی (شلخی) چه پښه یان ورته (لهچو) وائی یو ځــــای ټکوی اوبیائی په یو لوښی کی اچوی اوپه معلوم مقدار پکی دجوارواوړه اچوی آوجوش ورکوی اوپه لـــــږه اندازه مـــا لګــــــه هـــم پکــــــی اچوی بیائی په یوه پاکه تیکه پټی جوړوی اوپه هغه ځای چه دانــه وی ایږدی پدی درمل دانه سوری کیږی بیا وربااندی دغواو غـــوړی وهی اوپه زخم باندی بل صحرائی

بوټی چه عموماً دابوپه خواکی پیداکیږی اوپشه یان ورته (پونکش-پتك) یعنی دوینی اوزوی دایستلوپانه وربانـدی ایږدی پدی درمـل مریض دتکلیف څخه نجات مومی .

## دپوندو چاودیدو درمل :

دژمی دزیات یخنی اوپه غرونواو ځمکو کی دکار دکولو له کبله چه دچا دپښو پوندی چاو دلی وی‌نوددی درمل داسی کوی چه لمـړی وازده رااخلی اوهغه په‌اور ایږدی‌اودښه گرمیدو ورسته پری هغه ځایونه چه چاودلی وی داغ ورکوی‌اوکه زیات چاودلی وی نوبیادداغ ولو ورسته ئی په ستنو باندی چه‌چه دګنډلو تارئی وریښم وی‌ګنډی اوپدی ترتیب درمل صورت نیسی.

## دلړمی دانو درمل :

کله کله په کلیو او بانډوکی‌ځینو کسانوته دناروغتیا له کبله په بدن کی لړمی چه پشه‌یان ورته‌ویلوت وائی راخیژی او مریـض دتکلیف سره‌مخ کیږی نوددی رنځ‌دعلاج لپاره دعقیدی له مخی دجولا ګانو دکور دبزو دوږغنو څخه جوړشوی رسی چه عموماً دبار وړلـو لپاره جوړ شویوی اوپشه یان‌ئـی(شون) په نوم یادوی راوړی او د مریض په ټول بدن ئی ګرځوی اوهمدا رنګه یو صحرائی بوټی چـه (نانګی دمن) نومیږی ،جوانی دچر ګو بڼکی، دښځی دسر ویښتان یو ځای کوی اوهغه په لوښی کـــی‌داور سره یو ځای ورته لوګی کوی پدی درمل مریض روغتیا مومی .

## دلړم چیچلو درمل :

دعقیدی په لحاظ ئی په کلـی‌او ولس کی دمشخص او معلومـو خلکو لخوا صورت نیسی اوطبابت‌ئی هم کیږی چه‌په لاندی ډول دی دلړم دچیچلو سره‌سم وچ شفتـل‌دستی په ګرمو اوبو کی اچوی او ورته باس ورکوی اوبیرته ئـــی‌داوبو څخه راباسی اوهغه ځـــای چه نیشی دلړم معلوم وی ایـږدی‌چه دغه درمل زهر وژنی اوبیا ور باندی (اوچوم بوتیلك) په نـــوم‌صحرائی بوټی ګرځوی اوبیا ور -

باندی دچلم تنباکو پانی ایـــږدیاوپدی ډول مریض درمل کوی .

**دستونی درد درمل :**

کله کله ځینو کسانو تـــه دستونی درد پیدا کیږی اودرد ســره بیا ستونی اړی یا غوتی پیدا کوی نوپه کلیو او باندو کی دداســـی رنځ دعلاج لپاره دداسی وګړنـــیطبابت څخه کار اخلی چه لمړی د مریض غاړه دغواو په غوړ یوښه مالش ورکوی بیا وربان‌دی دنــری غاړی کجو پانی ایږدی.

که پدی ښه نشو نویو صحراـئی ګل چه نازکبدن نومیږی دهغه پانی په غاړه باندی ایږدی اوپـدیلاره کی رنځور درمل کیږی .

**دزخم تداوی :**

په کلیو او باندوکی که څوک دتیره شی پواسطه غوڅ شی نـــو ددی زخم لپاره دداسی وګړنــــیطبابتڅخه کار اخلی چه په خوړونو کی صحرائی ایلنی پودینه چــــه پشه یان ورته ویین وائی راوړی هغه دغواو په غوړیو کی ښه سورکوی اوښه ئی په ډبروئی تکــوی او بیـــا پـــــه زخـــم ئـــیایږدی دغه زخم نه قیصر کیږی اودغه طبابت له مخیزخمدرمل‌کوی .اوهمدا رنګه وازده دمعلوم مقـدار هریږی زرچوبی سره یو ځای ښــه تکوی اوپه زخم ئی ایږدی اوهــم دپسه وریږی په لاس سره برابرویاوپه غوړیوکی ښه سور کـــوی اوپه زخمئی ایږدیزخم زر جوړیږی.

# سمونلیک

| صحیح | غلط | سطر | مخ |
|---|---|---|---|
| میناتوته | میناتو | ٤ | الف |
| پاتی نی | پاتی یی | ۱۳ | ۱ |
| دپرکنو | دکنو | ۲۰ | ۲ |
| دلیکلو | دلیکو | ۱۸ | ۳ |
| په هکله | سه هکله | ٤ | ٤ |
| لهنجریك | ابحیره | ۱۳ | ٦ |
| نور پایه | نوریایه | ۱۰ | ۷ |
| سیخانو | پسخانو | ۲۱ | ۸ |
| سیخانو | میخانو | ۲۲ | ۸ |
| دشپی | دمپلی | ۸ | ۹ |
| پشه یانو | پشه یاننو | ۱٤ | ۹ |
| نبت | انبت | ۲۲ | ۹ |
| وروسته یخوی | یخ وی | ۱٤ | ۱۰ |
| دکاریو | دکولیو | ۱۷ | ۱۰ |
| دپنځو ښخه تر لسو کالو | دپنځو کالو | ۱۹ | ۱۰ |
| تمبِر | تین | ۹ | ۱۱ |
| سوړ | سسړ | ۲۱ | ۱۱ |
| شات | پات | ٦ | ۱۲ |
| دتیکو | وتیکو | ۲۰ | ۱۳ |
| لشل | شل | ۲۲ | ۱۳ |
| پنیرونه | انیرو نه | ۲۳ | ۱۳ |
| اوبه د سترګو | او دسترګو | ۱۳ | ۱٤ |
| دانړو | دادا نړو | ٥ | ۱۸ |
| داڼ مونیك | و(دنده موړیك | ۱۹ | ۱۸ |

| مخ | سطر | غلط | صحیح |
|---|---|---|---|
| ۱۹ | ٦ | دغور ئی | دغوائی |
| ۲۰ | ۱۳ | نتی | ننی |
| ۲۰ | ١٤ | ذبه | ژبه |
| ۲۰ | ۱۸ | دعفیدې | دعقیدی |
| ۲۱ | ٦ | کائی | کانی |
| ۲۲ | ۱۲ | ختیا کانی | خمتا کانی |
| ۲۳ | ۲۰ | چلنی پسیی | خپلی پیسی |
| ۲٤ | ٤ | ته ته | ته |
| ۲٤ | ۱۹ | څارئیو | څارویو |
| ۲٦ | ۱۲ | شریکو | شریکوی |
| ۲۷ | ۲۲ | دوه | دده |
| ۲۸ | ۳ | څیریو | څیریـو |
| ۳۲ | ٥ | کوتنی | کوټنی |
| ۳۳ | ۲ | اوخلك نامه | او الهندو په نامه |
| ۳٤ | ۱۲ | ورنه | ورته |
| ۳۷ | ۱۲ | زدره | زوره |
| ٤۲ | ۹ | سر فبرَ | سر قبر |
| ٤٥ | ۱۰ | کانه | کانړه |
| ٤٦ | ٦ | ختنو | حتمینو |
| ٤۷ | ۱۲ | غوښنل | غوښتل |
| ٤۸ | ۲۰ | به | په |
| ٥۰ | ۱۸ | نکرین | نکریزی |
| ٥۰ | ۱۹ | نکریړی | نکریزی |
| ٥۳ | ۳ | ئبه | ژبـه |
| ٥٤ | ۷ | په ماښو | په بانړو |
| ٥٦ | ٦ | زیار | زیان |

| مخ | سطر | غلط | صحیح |
|---|---|---|---|
| ۵۷ | ۹ | څیروی | څیزوی |
| ٦۱ | ۱۱ | نکریزی | ننګریز |
| ٦۷ | ۹ | خوشی | جوشی |
| ٦۷ | ۱۰ | پوری تختی پخوا نه ورته ځوړ شویوی وړی | جوشی اوبه وربا ندی پاشی |
| ٦۷ | ۱۳ | فربنکی | فرهنګی |
| ٦۷ | ۲ | بکولونه | پکولونه |
| ۷۱ | ۲ | دچینی | دچپنی |
| ۷۲ | ۷ | الندا | سوخولی |
| ۷۳ | ۸ | لرونتو | لرونکو |
| ۷٤ | ۸ | ډولونه یواځی ځی | او یواځی |
| ۷۵ | ۱ | او دخپل لمړی شدی ترورسول شو | ښاروو لپاره چوپان انتخابوی |
| ۷٦ | ۲۰ | بانجو | کلی |
| ۷۸ | ۸ | خشأ | خثا |
| ۷۹ | ۱ | چپل | چیل |
| ۸۰ | ۲ | منځه | منجه |
| ۸۰ | ۱۲ | علیهد | جدا |
| ۸۵ | ۲۰ | مالتسوی | مالشوی |
| ۸۷ | ۹ | یعلوم | معلوم |
| ۹۱ | ۱۳ | ځای په پسرلی موسم کی څخه جوړوی | غوړنو |
| ۹٤ | ۹ | داسپفوع | داسپفو لو |
| ۹۵ | ۱ | یرچ | مرچ |
| ۹۹ | ۱۵ | دندو | دندر |



